| شپږم لوست | د تدریس پړاوونه | دقیقې |
|---|---|---|
| پیل | • ښوونکی دې د هر لوست په پیل کې مقدماتي فعالیتونه، لکه: سلام اچول، روغبړ کول، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتنه، د تېر لوست ارزونه او لنډ تکرار او د انګیزې رامنځ ته کول، ترسره کړي<br>• ښوونکی دې وګوري چې ټولو زده کوونکو خپل کتابونه پرانیستي دي او درس ویلو ته چمتو دي؟ | ۵ |
| <br>غږ پیژندنه | **د غږ اوریدل :**<br>• د تصویر په اړه له زده کوونکو سره خبرې وکړئ.<br>• کلمه او لومړی غږ یې بیان کړئ.<br>• زده کوونکي له تاسو سره د کلمې لومړی غږ تکراروي.<br>• زده کوونکي لومړی غږ له ځان سره تکراروي.<br>• زده کوونکي دا ښيي چې یوه کلمه په نوي غږ پیل شوې ده که نه؟<br>• همدا فعالیت د دویم او دریم تصویر لپاره هم ترسره کړئ.<br>• همدا پړاوونه د نورو تورو لپاره هم تکرار کړئ. | ۵ |
| <br>د تورو او کلمو لوستل او لیکل | **د تورو لوستل او لیکل:**<br>• توری پر تخته ولیکئ.<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې دغه توری / ــــــــــ/ غږ ورښيي.<br>• پر توري ګوته کېږدئ او غږ یې له زده کوونکو سره یوځای تلفظ کړئ.<br>• پر توري ګوته کېږدئ او پرېږدئ چې زده کوونکي یې غږ په خپله ووایي.<br>• زده کوونکو ته ورښیئ چې دغه توری په هوا کې څنګه لیکل کېږي؛ بیا دا کار له هغوی سره په ګډه تر سره کړئ.<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې په خپل کتاب کې دغه توری په ګوته وځاري.<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې دا توری دې پنځه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>• همدا تمرین د کلمې په منځ او آخر کې د راغلو تورو لپاره هم وکړئ.<br>• همدا تمرین د نورو تورو لپاره هم وکړئ.<br>**د کلمو لوستل:**<br>• د هجا د برخې د سر دوه کلمې پر تخته ولیکئ.<br>• زده کوونکو ته ورښیئ چې څنګه کلمې هجا کېږي؛ وروسته یې بیا له هغوی سره په ګډه هجا کړئ او پرېږدئ چې هغوی په خپله دا کار وکړي.<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې جوړه جوړه دې د هجاوو د تمرین کلمې په خپلو کتابونو کې ولولي.<br>• په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري. | ۱۰ |

| فعالیت | تشریح | وخت |
| --- | --- | --- |
| د متن لوستل | **له لوستلو څخه مخکې** (د دویم متن بیا لوستل)<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې د لوستلو د کیسې/متن تصویرونو ته دې وګوري او عنوان یې ولولي او پوښتنه ترې وکړئ چې له پروني لوست څخه یې څه په یاد دي؟<br>**د لوستلو پر مهال:**<br>• زده کوونکي کوښښ کوي چې کیسه/متن په خپله ولولي.<br>• ښوونکی کیسه/متن په نمونه یي شکل زده کوونکو ته لولي.<br>• بیا ښوونکی او زده کوونکي په ګډه متن لولي.<br>• هر زده کوونکی یې له یوه بل ټولګیوال سره لولي.<br>• هر زده کوونکی یې ځانته لولي. | ۵ |
| املا | • زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې ولیکي.<br>• زده کوونکو ته ووایئ چې کلمې تکرار کړي او هجاوې په چکچکو سره جلا کړي: ـــــ-ـــــ-ـــــ. دا کلمه ـــــ هجاوې لري.<br>زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې هرې هجا ته ځیر شي او د هجا توري ولیکي. ورته ووایئ چې کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>• دریم پړاو د ـــــ، ـــــ ، ـــــ کلمو لپاره تکرار کړئ.<br>• کله چې زده کوونکي لیکل کوي، په ټولګي کې وګرځئ. وروسته له هغې چې زده کوونکو کلمې ولیکلې، له زده کوونکو څخه د هغه تورو په اړه د پوښتنو په کولو سره چې هغوی لیکلي دي، هره کلمه پر تختې ولیکئ.<br>• بیا د زده کوونکو کتابچې وګورئ چې چا کلمې سمې لیکلي دي او څوک لا زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل لوست کې بیا هماغه زده کوونکو ته زیات پام وکړئ چې زیاتې مرستې ته اړتیا لري. | ۱۰ |
| ارزونه / کورنۍ دنده | • ارزونه: له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.<br>• کورنۍ دنده: زده کوونکي دې په کور کې یو ځل بیا د املا کلمې ولیکي. | ۵ |
| حسن خط | **د حسن خط فعالیت:**<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته د هرې ورځې له لارښود سره سم د حسن خط په ساعت کې لارښوونه وکړي چې په پوره دقت سره اړونده تورو ته وګوري او له کرکي یا پنسل قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي. | ۴۵ |

## د ځانګړې زده کړې اړتیاوې

### د ځانګړې زده کړې د اړتیاوو درک کول

د لوستلو او لیکلو د زده کولو لپاره مختلفو مهارتونو ته اړتیا ده. که کوم ماشوم لیک لوست سم نه زده کوي، معنا یې دا نه ده چې هغه نه غواړي دا مهارتونه زده کړي، بلکې هغه به ځانګړي تعلیمي ضرورتونه ولري. کېدای شي هغه فیزیکي یا سلوکي ستونزې ولري. مثلاً په لیدلو، اورېدلو یا خوځېدلو کې به ناتوانه وي؛ یا به دې کې ستونزه ولري چې له نورو زده کوونکو سره اړیکې ټینګې کړي، څوک خپل ملګري کړي او کورنۍ دنده ورسره یوځای ترسره کړي.

### د هغو زده کوونکومعلومول چې ځانګړې تعلیمي اړتیاوې لري

هغه زده کوونکي چې په لوستونو کې پخ ګټل کېږي او یا هماغه یو ټولګی بیا له سره وایي (ناکامېږي)، معمولاً اضافي مرستې ته اړتیا لري. کله چې د زده کوونکو د ارزونې فورمې ډکېږي، دا معلومېږي چې کوم زده کوونکي د هغو مهارتونو په لاسته راوړلو کې پاتې راځي چې تمه یې ورنه کېږي. ښوونکی باید دا معلومه کړي چې څه شی زده کوونکي نه پرېږدي چې دا مهارتونه ترلاسه کړي.

- آیا زده کوونکي کومې مهمې ستونزې لري؟
- آیا زده کوونکي پر تختې او کتاب لیکل شوي شیان ویني؟
- آیا د ښوونکي غږ اورېدلی شي؟

که د کوم زده کوونکي لاس یا پښه نه وي، یا د سترګو یا د غوږونو ستونزه ولري، معنا یې دا نه ده چې ګواکې د نورو زده کوونکو په نسبت ناتوانه دي، بلکې معنا یې دا ده چې ښوونکی باید ورسره ډېره مرسته وکړي چې له درسي کتاب او نورو درسي موادو څخه د نورو په شان استفاده وکړای شي.

### له داسې زده کوونکو سره مرستې

- هغه زده کوونکي له پامه مه غورځوئ چې پخ ښکاري. دا معلومه کړئ چې هغوی څه کولای شي.
- که کوم زده کوونکی په لیدلو یا اورېدلو کې ستونزه لري، مخکې څوکیو ته یې راولئ چې درنژدې وي.
- له زده کوونکو سره په ساده ژبه خبرې وکړئ. په نرم، آرام، مهربانه او واضحه غږ ورسره وغږېږئ.
- د سیمې په لهجه ورسره وغږېږئ چې په لارښوونو سم پوه شي.
- دا تمه به نه لرئ چې ټول زده کوونکي دې په یوه اندازه مخ ته ولاړ شي. ځینې زده کوونکي که یوه کلمه هم ولیکي، دا یې بریا ګڼل کېږي.
- هغوی د تکړه زده کوونکو څنګ ته کېنوئ چې د صفحې په موندلو او په ګوته د کلمو ښودلو کې ورسره مرسته وکړي، یا ورته و وایي چې څه باید وکړي.
- هغوی ته د فکر کولو او د درسي فعالیت د بشپړولو لپاره اضافي وخت ورکړئ.
- څومره چې ممکن وي، اساسات ورسره بیا بیا تکرار کړئ.

### له دې زده کوونکو سره د تدریس پر مهال مرستې

په ټولګي کې ښه تدریس به زده کوونکو ته ګټه ورسوي چې:

- درسي مواد (فلش کارتونه، واقعي شیان، عکسونه، موډلونه او لوی رسمونه) وکاروئ.
- د کلیدي کلمو رسمونه پر تختې یا چارټ رسم کړئ.
- د نویو کلمو او نویو غږونو د ښه تدریس لپاره هم وزنه کلمې یا قافیې وکاروئ او له کلماتو سره لوبې وکړئ.

**د تدریس عیارول به اړین وي**

- په ټولګي کې داسې فضا جوړه کړئ چې هر زده کوونکی وغواړي په فعالیتونو کې برخه واخلي او دا وېره یې په زړه کې نه وي چې که غلط ځواب ورکړي، څوک به ورپورې وخاندي.
- داسې پوښتنې وکړئ چې معلومه شي چې زده کوونکي په درس پوه شوي دي که یوازې د نورو په تقلید سره ځواب وايي.
- تکړه زده کوونکی وهڅوئ چې کله یې خپل کار خلاص کړ، له بل ملګري سره هم مرسته وکړي.
- یو مشر زده کوونکی مو وروزئ چې د ټولګیوالو له یوې وړې ډلې سره د درس په بیا لوستلو یا د نورو فعالیتونو په ترسره کولو کې مرسته وکړي.

د لوستلو همدغه مرستندویه طریقه او اصول د لوستلو په نورو برخو لکه انتقالي مېتود (زه یې ترسره کوم، موږ یې ترسره کوو، تاسې یې ترسره کوئ مېتودولوژي)، بل چا ته لوستل، له بل چا سره لوستل او په یوازې ځان لوستلو کې وکارول شي.

په ابتدایي دوره کې باید د زده کوونکو دلچسپي د هغو شیانو په یادولو سره زیاته کړو چې دوی له پخوا پرې پوهېږي.

**لوستل**

د زده کوونکو د کتاب له کیسو او متنونو څخه استفاده وکړئ او د تصویرونو په اړه یې پوښتنې وکړئ. که زده کوونکی کومه کلمه لوستلی شي، پرېږدئ چې په لوړ آواز یې ولولي. وګورئ چې زده کوونکو خپل کتابونه سم نیولي دي او که نه؟ آیا هغوی پوهېږي چې متنونه له ښي څخه چپ لوري ته لوستل کېږي؟ زده کوونکي وپوهوئ چې توري او کلمې معناګانې لري او له غږ سره اړیکه لري. زده کوونکي وهڅوئ چې کله یو متن لوستل کېږي، دوی دې ګوته پرې تېروي.

**لیکل**

وګورئ چې زده کوونکو پنسل سم نیولی دی او توري یې سم لیکلي دي او که نه؟ د یوه یا دوو تنو انشاء ته ځیر شئ. که دغه هدفونه پوره شوي وو، بیا پر مخ تللی شئ.

**غوږ نیول او غږېدل**

هغه زده کوونکي چې ځانګړې تعلیمي اړتیاوې لري، ممکن د ټولګي مخې ته د خبرو کولو جرأت و نه لري. دوی ته لاره هواره کړئ چې زړور شي. اول دې له خپل څنګ لوري زده کوونکي سره خبرې وکړي، بیا د ټولګیوالو وړې ډلې جوړې کړئ او خبرو ته یې غوږ ونیسئ. کله چې ورڅخه پوښتنه کوئ، کافي وخت ورته ورکړئ چې ځواب ووايي. دا تمه به نه لرئ چې ټول متن/ ټوله کیسه درته ووايي. په ساده ځوابونو یې هم وستایئ.

**اصلاحي فعالیتونه**

- هر زده کوونکی له یوه بل زده کوونکي سره ملګری کړئ چې ورسره مرسته وکړي او د کتاب پیل، د صفحو شمېرې، کلیدي تصویر او کلمې ورته وښیئ.
- ساده کتابونه ورته برابر کړئ چې د کتاب کارول ورته آسانه شي.
- پر تورو او غږونو تمرکز وکړئ. ورته توضیح کړئ چې دا توری د دې غږ لیکلی شکل دی. توري په هوا کې رسم کړئ او ویې لیکئ. (دا تمرین د زده کوونکي له نوم څخه پیل کړئ.)

- داسي لوبې وکړئ چې لومړي توري، هجاوې او غږونه په کې وکارول شي.
- د ليکلو د لومړنيو مهارتونو تمرين ته دوام ورکړئ (يعنې په هوا کې رسمول، پر ځمکه ليکل، په تباشير سره د تختې پر مخ ليکل، په لاس د تورو ليکل).
- نوي کلمې د تصويرونو په چارټونو ونبيئ.
- ساده کلمې په فلش کارټونو کې وروښيئ؛ د کارټ پر يو مخ دې تصوير وي او پر بل مخ يې کلمه.
- له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې د خپلو ورځنيو چارو په اړه خبرې وکړي: مثلاً له خوبه پاڅېدل، ښوونځي ته راتلل.
- په لوړ غږ آشنا او هم وزنه کلمې بيا بيا ورته تکرار کړئ.
- په ټولګي کې سالمه رواني فضا رامنځته کړئ.

**د لوستلو او اورېدلو متنونه**

په کتابونو کې دوه ډوله متنونه دي، د لوستلو متنونه او د اورېدلو متنونه؛ چې هر يو يې خپلې ځانګړتياوې او هدف لري. د اورېدلو متنونه د ښوونکی له خوا زده کوونکو ته لوستل کېږي او زياتره دا ډول متنونه د لوستلو د متنونو په پرتله اوږده دي. د دا رنګه متنونو هدف دا دی چې د زده کوونکو د غوږ نيولو مهارت وروزي، نوې کلمې ورزده کړي او نور هغه مهارتونه يې وروزي چې وروسته بيا د متنونو په لوستلو کې د دوی په کارېږي. د لوستلو متنونه نسبتاً لنډ دي. دا به د زده کوونکو د لوستلو مهارت وروزي، د کلماتو زېرمه به يې زياته کړي او له متن څخه د مفهوم اخيستلو مهارت ته به يې وده ورکړي.

په دې متنونو کې د تورو استعمال، په جمله کې د کلمو شمېر او په يوه متن کې د جملو او کلمو شمېر ته پام شوی دی. په دې لاندې جدول کې د لومړي او دويم ټولګي د بېلا بېلو اونيو لپاره معيارونه ښودل شوي دي. دا جدول راښيي چې موږ ګام په ګام پر مخ تللي يو چې د زده کوونکو د لوستلو مهارت ته وده ورکړو. لاندې جدول کې د هرې اونۍ د متن لپاره د کلمو او جملو شمېر ښودل شوی دی.

| | لومړی ټولګی | دويم ټولګی |
|---|---|---|
| ۱ – ۵ اونۍ | تصويري کيسې له ۴ انځورونو سره | ۷ – ۱۰ جملې<br>۲ – ٦ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۴۲ |
| ٦ – ۱۰ اونۍ | ۲ – ۴ جملې<br>۲ – ۴ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۱۰ | ۸ – ۱۱ جملې<br>۲ – ۷ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۵۵ |
| ۱۱ – ۱۵ اونۍ | ۳ – ٦ جملې<br>۲ – ۴ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۱۸ | ۹ – ۱۲ جملې<br>۲ – ۸ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ٦٦ |
| ۱٦ – ۲۰ اونۍ | ۵ – ۸ جملې<br>۲ – ۵ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۳۰ | ۱۰ – ۱۳ جملې<br>۲ – ۹ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۷۹ |
| ۲۰ – ۲۸ اونۍ | ۷ – ۱۰ جملې<br>۲ – ٦ کلمې په هر جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۴۲ | ۱۱ – ۱۴ جملې<br>۲ - ۱۰ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۹۲ |

په لومړي ټولګي کې، د اوربېدلو کیسې د اونۍ په لومړۍ ورځ د ښوونکي له خوا لوستل کېږي. د اونیو په نورو ورځو کې، زده کوونکي د لوستلو کوچني متنونه په خپله لولي او یا یې تکراروي. په دویم ټولګي کې، د اوربېدلو کیسې د اونۍ په دویمه او څلورمه ورځ لوستل کېږي. د دویم ټولګي کیسې د لومړي ټولګي د کیسو په پرتله یو څه اوږدې دي. زده کوونکي باید د کیسې تېره برخه رایاده کړي چې د اونۍ په څــلورمه ورځ د کیسې په دویمه برخه ښه پوه شي. دا به د زده کوونکو د حافظې د تقویه کولو تمرین هم وي.

**د متن ډولونه**

په لومړي ټولګي کې، متنونه دوه ډوله دي چې روایتي متنونه او توضیحي یا معلوماتي متنونه بلل کېږي. روایتي متنونه معمولاً هغه کیسې دې چې کرکټرونه، پلاټ (مشخص ځای، زمان)، غوټه (ستونزه) او د غوټې حل لري. دا کیسې د خوند او پند لپاره وي. توضیحي متنونه هغه متنونه دي چې زده کوونکو ته معلومات ورکوي. دغه متنونه بیا پلاټ او نورې د کیسه اړونده برخې نه لري. مثلاً د لاسونو پرېمینځلو یا د ځان پاک ساتلو په اړه د معلوماتو ورکول معلوماتي متنونو کې راځي. زده کوونکي باید معلوماتي متنونه زده کړي او پر معنا یې پوه شي. همداراز، په درسي کتاب او نورو لوستونو کې اکثره متنونه په روایتي او ځینې نور یې په معلوماتي بڼه راغلي دي. د توضیحي او روایتي متنونو په لوستلو سره به زده کوونکي د متنونو د دواړو ډولونو د لوستلو او پرې پوهېدلو طریقه زده کړي.

**د رواني رغونې ټولګی**

**د زده کوونکو خوندیتوب**

د ماشومانو او ځوانانو خوندیتوب دا معنا لري چې څوک ور څخه ناوړه ګټه وانه خلي، استثمار یې نه کړي، بې غوري ورته ونه کړي او د ماشوم رواني، احساسي/ عاطفي، سلوکي، اجتماعي، فزیکي او اقتصادي اړخونو ته یې پاملرنه وشي. ښوونکی خپلو زده کوونکو ته د سالمې درسي فضا په برابرولو کې حیاتي نقش لري. د رواني رغونې په ټولګیو کې ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته کولی شي چې پرځان باور پیدا کړي، خپل ارزښت وپېژني، ځان قابو کړي، له نورو سره ټولنیزې اړیکې ټینګې کړي، له ټولګیوالو او ښوونکو سره ښې اړیکې وپالي او دا هر څه د زده کوونکي د عمومي وضعیت په ښه کېدو کې مرسته کوي.

**یو هوسا ماشوم یا ځوان دغه ځانګړنې لري**

- په خپل ژوند کې پر ملګرو او مشرانو باور لري او له هغوی سره ځان تړلی بولي
- پر خپل ځان اعتماد او باور لري
- په ټولنیزو چارو (لکه مرکه، ګډ کار، د ستونزو حل او داسې نور) پام او تمرکز کوي
- له خپلو ملګرو او تولګیوالو سره مرسته او همکاري کوي
- د خپلې کورنۍ او ټولنې د نورو غړو درناوی کوي
- د کارونو په تر سره کولو باندې ډېر تمرکز کوي او په پوره پام سره یې تر سره کوي
- خپلې ورځنۍ چارې ښې ترسره کولی شي
- خوشحاله وي او د ژوند په خوند پوهېږي
- په زړه کې یې وېره او اندېښنه نه وي.

**مهم پیغام**

هر څوک د ماشومانو او ځوانانو د هوساینې لپاره جلا تعریف لري. معمولاً اعتماد، مثبتې اړیکې، خوندیتوب او د ډاډ احساس او همدارنګه د ورځنیو چارو د پر مخ بیولو، له ملګرو، د کورنۍ له غړو، ښوونکو او د ټولنې له نورو غړو سره د مثبتو اړیکو درلودلو وړتیاوې په کې شاملې دي.

**د هوساینې عنصرونه**

هوساینه دغه پنځه عنصرونه لري:

۱. د کنټرول د شتون احساس
۲. د تړاو/ خپلوۍ احساس
۳. د ځاني ارزښت احساس
۴. مثبتې ټولنیز اړیکې
۵. ذهني/فکري هڅونه (ذهني پرمختګ)

**۱. د کنټرول د شتون احساس**

- کله چې زده کوونکي احساس کوي چې په ښوونځي کې کنټرول شته، نو هغوی:
  - د خوندیتوب او امنیت احساس کوي
  - د ثبات احساس لري
  - په دې پوهېږي چې کومې هیلې لري او له دوی څخه کومې تمې کېږي
- د کنټرول حس کېدای شي د هغو ماشومانو او ځوانانو لپاره ځانګړی ارزښت ولري چې د بې ځایه کېدو او تاوتریخوالي له امله یې دغه حس زیانمن شوی وي.

**ښوونکی د کومو فعالیتونو په ترسره کولو سره د کنټرول حس رامنځ ته کولی شي؟**

- ورځنی مهال وېش ولرئ او له زده کوونکو هم وغواړئ چې دا ډول مهال ویش له ځان سره وساتي.
- مهال وېش عملي کړئ.
- ټولګی هره ورځ په همدې ډول پیل کړئ او همداسې یې ختم کړئ.
- درسي پلان له ځان سره ولرئ او عملي یې کړئ.
- وګورئ چې زده کوونکو د درس هدفونه تر لاسه کړي دي، که نه؟

**۲. د تړاو (خپلوۍ) احساس**

ولې مهمه ده چې زده کوونکي خپل تعلیمي چاپېریال خپل وګڼي او ځان ورپورې تړلی وبولي؟

- کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې د خپلوۍ احساس وکړي نو:
  - خپلو ټولګیوالو، ښوونکو او د ښوونځي ټولنې ته درناوی کوي.
  - پر خپلو ټولګیوالو پام کوي او ورسره خواخوږي کوي.
  - پر خپلو ښوونکو اعتماد کوي او خپل یې ګڼي
  - احساس کوي چې په ښوونځي کې منلی شخص دی او نور یې هرکلی کوي.
  - احساس کوي چې یوازې نه دی، بلکې د یوې ډلې غړی دی.
  - دا شیان به سبب شي چې زده کوونکي په منظم ډول ښوونځي ته راشي (غیر حاضري و نه کړي).
- دغه د خپلوۍ احساس په تېره بیا د هغو زده کوونکو لپاره ډېر مهم دی چې د کړکیچ او جګړو په وجه راکډه شوي وي.

**د ټولګي په فعالیتونو کې د زده کوونکو د شاملولو له لارې کولی شو د خپلوۍ یا تړاو حس یې راژوندی کړو.**

- د ټولو زده کوونکو د ګډون لپاره، هغوی ته دوه کسیزه، ګروپي او خپلواک کارونه وسپارئ.
- هغه زده کوونکی چې په ټولګي کې د یوه ځانګړي رول لپاره ټاکل کېږي، د هغوی نقش وخت په وخت بدل رابدل کړئ.
- ټولو زده کوونکو ته یو شان پام وکړئ.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل کار ټولګي ته وړاندې کړي.
- د ټولو زده کوونکو کار ټولګي ته وښیئ.

**د ټول ټولګي په کچه د پوښتنې د مطرح کولو یا په ټول ټولګي د غږ کولو تخنیک:**

- که ښوونکی د پوښتنې هغه تخنیکونه وکاروي چې ټولو زده کوونکو ته خطاب کوي، نو د زده کوونکو لپاره په ټولګي کې د ځواب ورکولو فرصت زیاتېږي. دا کار زده کوونکي پوهوي چې په فعالیتونو کې د دوی برخه اخیستلو ته اهمیت ورکول کیږي او دا چې دوی د ټولګي د ټولنې برخه ګڼل کېږي.
- دا کار له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د خپلوۍ احساس ولري.

**۳. د ځاني ارزښت احساس**

کله چې په ښوونځي کې زده کوونکي د ځان ارزښت احساس کړي، نو:

- ځان ورته غښتلی او باوري ښکاري.
- ځان ورته په چارو کې بریالی ښکاري.
- له خپل ځانه به راضي وي او پر ځان به باور ولري
- پر ځان او پر خپلې وړتیا ویاړي.
- سبا ته هیله من وي او احساس کوي چې خپل راتلونکی به په خپله جوړوي.

دا مهمه ده چې په تېره بیا په هغو ماشومانو کې د خپل ارزښت احساس پیدا کړو چې د ناخوالو، جګړو او نورو مُصیبتونو په وجه ځپل شوي دي او ځانونه ورته کمزوري ښکاري.

**څنګه په زده کوونکو کې د برترۍ او ښه والي احساس پیدا کړو:**

- زده کوونکي مه سپکوئ.
- له ټولو زده کوونکو سره ښه چلند وکړئ.
- زده کوونکي مه وهئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې د ټولګي په فعالیتونو کې برخه واخلي.
- زده کوونکي مه ګواښئ.
- زده کوونکو ته په احترام قایل شئ.
- د زده کوونکو دندې او نومونه واخلئ او نورو ته یې وښیئ. (مثلاً: احمد به د «قلم» د کلمې توري راته ووایي).
- مقررات او انضباط پر ټولو زده کوونکو یو ډول عملي کړئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې پوښتنې وکړي.
- زده کوونکي وستایئ.
- د زده کوونکو ځایونه بدل رابدل کړئ.
- وګورئ چې درس او فعالیتونه د زده کوونکو له سويې سره برابر دي که نه.

**۴. د مثبتو ټولنيزو اړيکو وده**

- کله چې زده کوونکي په خپلو منځو کې او له خپل ښوونکي سره ښې اړيکې وپالي نو:
  - ○ مثبت اجتماعي مهارت ترلاسه کوي.
  - ○ ځان ورته په دې ارزښتمن ښکاري چې نور يې خبرو ته غوږ نيسي، پام ورته کوي او ستايل کېږي.
  - ○ رواني ملاتړ احساسوي.
  - ○ پر خپل ځان باور يې زياتېږي.
  - ○ د باور کولو احساس يې غښتلی کېږي.
- له زده کوونکو او ښوونکي سره د ښو روابطو جوړول د هغو ماشومانو لپاره چې ستونزو ځپلي وي، لا زيات اهميت لري.
  - ○ په سختو او بړنيو حالاتو کې له مشرانو، کورنيو او ټولنې سره د ماشومانو اړيکې يو څه خرابېږي چې بايد پام ورته وشي. د دغو روابطو په بيا جوړولو کې د ماشومانو لاس نيوی ضروري دی چې په ماشومانو کې د اعتماد، خونديتوب او رواني امنيت احساس پيدا او پياوړی کېږي.
  - ○ کله چې زده کوونکي په خپلو کې مثبتې اړيکې پالي، د دوی اجتماعي مهارت پياوړی کېږي، خوشحالېږي، له نورو سره خواخوږي پيدا کوي او زغم يې زياتېږي.

**ښوونکی څنګه کولای شي چې د زده کوونکو تر منځ مثبتو اړيکو ته وده ورکړي؟**

- ○ ګروپي کار وکړئ.
- ○ زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې له يو بل سره لوبې وکړي.
- ○ دې ته پام وکړئ چې د زده کوونکو د اداره کولو لپاره قوانين شته.
- ○ زده کوونکو ته د خبرو کولو وخت ورکړئ چې يو بل سره وپېژني.
- ○ له زده کوونکو سره په درنښت وچلېږئ.
- ○ ګروپي تمثيلونه تر سره کړي.
- ○ ډله ييز فعاليتونه زده کوونکو ته مثبته انرژي ورکوي.
- ○ ډله ييز بحث او د نظرونو د تبادلې زمينه برابره کړئ.

**۵. د زده کړې هڅوونکی چاپېريال**

- زده کوونکي بايد د زده کړې لپاره ښه احساس ولري. همدا رنګه کله چې زده کوونکي درس ښه زده کړي، نو احساس به يې ښه شي.
- کله چې زده کوونکو ته ښکاره شي چې درس ښه زده کوي او له زده کړې څخه خوند اخلي، نو:
  - پر ځان باور يې زياتېږي.
  - راتلونکي ته هيله من کېږي.
  - احساسوي چې په ښوونځي کې له وخت څخه سمه استفاده کوي او ښوونځی د دوی په ژوند مثبت اغېز لري.
- ورته معلومېږي چې هرڅوک چې په درسي فعاليتونو کې برخه واخلي، درس به يې ښه زده شي.
- هرڅوک درسونه په بېله طريقه ښه زده کولی شي، نو که په بېلا بېلو درسي فعاليتونو کې برخه واخلي، درس به يې ښه زده شي او بيا به له زده کړې څخه خوند اخلي.

ښوونکی بايد د تدريس داسې بېلابېلې لارې چارې پلان او عملي کړي چې هره ورځ په کې د زده کوونکو درسي

فعالیتونه شامل وي او ټول زده کوونکي پکې ونډه ولري.

- یوه لاره یې دا ده چې ښوونکی مختلفې پوښتنې وکړي او زده کوونکي په درسي فعالیت کې راګډ کړي.
- کله چې زده کوونکي ګوري چې درسونه یې ښه زده کیږي او په درسي فعالیتونو کې هم برخه اخلي، نو احساس د خوښۍ کوي.

## د زده کړې هڅوونکی چاپېریال د زده کوونکو پر هوساینې څه اغېز لري؟

په درسي فعالیتونو کې فعال زده کوونکي دغه ځانګړنې لري:

- درس او زده کړې ته لېوال وي.
- ټولګي ته په منظم ډول راځي.
- له نورو زده کوونکو سره مرسته او ښه چلند کوي.
- پوښتنې او تجربه کولو ته زړه ښه کوي.
- د ټولګي په ټولو فعالیتونو کې برخه اخلي او خپله کورنۍ دنده ترسره کوي.
- ښه عادتونه لري او د نورو درناوي کوي.
- د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ نیسي او پوره پام ورته کوي.

## غیر فعال زده کوونکي

هغه زده کوونکي چې په درسي فعالیتونو کې برخه نه اخلي لاندې ځانګړتیاوې لري:

- په ټولګي کې ستړي ښکاري.
- ټولګي ته چمتو او منظم نه راځي.
- خپل ټولګیوال او ملګري اخلالوي او له هغوی سره مرسته نه کوي.
- د ټولګي په فعالیتونو کې ونډه نه اخلي او ټولګی اخلالوي.
- له نورو سره ښه چلند نه کوي.
- په ټولګي کې درس ته غوږ نه نیسي او درس ته پام نه کوي.

## د زده کوونکو د هوساینې چوکاټ

په یوه مناسب ښوونیز چاپېریال کې هوسا زده کوونکي دغه کارونه ترسره کوي:

| د زده‌کوونکو د هوساینې‌عنصرونه | د ښې هوساینې په وخت کې د زده کوونکو د فعالیتونو بېلګې دا دي: |
|---|---|
| د کنټرول احساس لرل | وخت پېژندل او د مهال وېش له مخې کار ترسره کول، د کورنۍ دندې سرته رسول، درس ویل او کوښښ کول، درناوی کول، غوږ نیول، په درسي فعالیتونو کې برخه اخیستل.... |
| د خپلوۍ یا تړاو احساس لرل | یو بل ته درناوی کول، له نورو سره ښه چلند او د مثبتو اړیکو درلودل، په منظم ډول ټولګي ته حاضرېدل، ښوونکو او خپلو ملګرو ته درناوی، له خپلو ټولګیوالو سره یوځای کار کول او له هغوی سره مرسته کول، ټولګیوال د هغوی په نومونو بلل، د ښو تکړه زده کوونکو په ډلو کې شاملېدل، ټولګي خپل ګڼل، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، د ټولګي د مقرراتو پېژندل او عملي کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو سره روغبړ کول او هغوی ته ښه راغلاست ویل، د ټولګي په فعالیتونو کې د برخې اخیستلو پرمهال د ویاړ او خوښۍ احساس کول .... |

| د ځاني ارزښت احساس لرل | له نورو سره د خپلو نظرونو شریکول، له نورو سره مرسته کول، په ډله ییزو فعالیتونو کې ګډون کول، په خپل نفس اعتماد او باور درلودل، راتلونکې ته هیله مندي ښودل، په ټولګي کې پوښتنې کول او د ښوونکو پوښتنو ته ځواب ورکول، د درس په هدفونو ځان پوهول او لاسته راوړل یې .... |
|---|---|
| د مثبتو ټولنیزو اړیکو پیاوړي کول | په ټولګي کې ښه ملګري لرل، له خپلو ټولګیوالو سره په درسونو کې مرسته کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو څخه مرسته غوښتل، له خپلو والدینو او د کورنۍ له غړو سره مرسته کول، له ښوونکي څخه د خپلو ستونزو د هوارۍ په اړه پوښتنه کول، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، لاسي کارونه تر سره کول، له ټولګیوالو، ښوونکو، مشرانو، ګاونډیانو او د کورنۍ له غړو سره مثبتې اړیکې درلودل .... |
| د زده کړې هخوونکي چاپیریال را منځ ته کول | د ذهني ودې لپاره د مناسب چاپیریال درلودل، له نورو سره ښه چلند کول، د ټولګي په فعالیتونو کې په ګډون سره د خوښۍ او آرامتیا احساس کول؛ لکه (روزنیزې لوبې کول، د ګروپي کارونو کول، رسامي کول، د کیسو، د هېواد پالنې ترانو او شعرونو لوستل...)، په ټولګي کې د خپل احساس بیانول، تعلیمي پرمختګ درلودل، د زده کړې قابلیت او ملاتړ درلودل. |

### ټولنیزه - عاطفي زده کړه

اجتماعي عاطفي مهارتونه هغه داخلي، عاطفي او ادراکي مهارتونه دي چې له هر چا سره مرسته کوي چې په ژوند کې بریالی شي . ټول انسانان (ماشومان او لویان) په دې مهارتونو سره کولی شي معلومات بې له دې چې ګډوډ شي، تنظیم کړي، له خپلې حافظې کار واخلي، خپل احساسات او عواطف کنټرول کړي، کار ته دوام ورکړي، ستونزې حل او له نورو سره ښې اړیکې ټینګې کړي.

د زده کوونکو په درسي کتاب کې د ټولنیزو عاطفي مهارتونو د روزلو لپاره بېلابېل فعالیتونه، پوښتنې او متنونه راغلي دي چې ښوونکی د دې مهارتونو په انتقال کې مهم نقش لرلی شي. د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو پنځه اساسي عناصر به په تفصیل سره تشریح شي.




### ټولنیز - عاطفي مهارتونه څه اهمیت لري؟

ټولنیز - عاطفي مهارتونه ماشومانو او لویانو ته هغه مهم اسباب او لارې چارې برابروي چې په خپل ژوند کې بریالي واوسي او ښه پرمختګ وکړي. دغه مهارتونه په تېره بیا د هغو ماشومانو لپاره چې له ناخوالو، لکه: فقر، تاوتریخوالي، کډوالۍ او بې ځایه کېدو سره مخ شوي وي، ډېر مهم دي. ناخوالې تل د ماشومانو پر هوساینې او پرمختګ منفي اغېزه کوي. ټولنیز – عاطفي مهارتونه ماشومانو ته اسباب او لارې چارې برابروي چې پر خپل درس تمرکز وکړي، خپل احساسات کنټرول کړي، له نورو سره مناسب متقابل عمل وکړي، د فشار او سختیو په مقابل کې ودرېږي او ځان بریالتوب ته ورسوي.

**څنګه کولای شو ټولنيز - عاطفي مهارتونه په سمه توګه زده کوونکو ته وښيو؟**

څېړنو ښودلې ده چې په بېلابېلو لارو چارو د ټولنيزو - عاطفي مهارتونو زده کول خورا ګټور وي، خو دا بايد تل له ښو اړيکو او ځانګړې پاملرنې سره مل وي.

۱. د ټولنيزو - عاطفي مهارتونو روښانه لارښوونه: دا لارښوونه بايد مستقيمه وي او په روښانه، متمرکز او متداوم ډول ترسره شي.

۲. په ټولو تعليمي ساحو کې د ټولنيزو - عاطفي مهارتونو تدريس په پام کې نيول. په ټولو ورځنيو پيداګوژيکي او صنفي فعاليتونو کې د ټولنيزو – عاطفي مهارتونو ښودل بايد تقويه شي.

۳. د نوښتي او تخليقي فعاليتونو له لارې د ټولنيزو - عاطفي زده کړو عملي کول، مثلاً په ټولګي کې د هغو لوبو او فعاليتونو تر سره کول چې په مستقيم ډول تدريس شوي عاطفي مهارتونه تقويه کوي.

٤. په دې کار کې د کورنيو او ټولنې شاملول: ميندو ،پلرونو او کورنيو ته دې د ټولنيزو – عاطفي مهارتونو په باره کې معلومات ورکړل شي او هغوی دې په دې پروسه کې شريک کړای شي.

**د ټولنيزو - عاطفي مهارتونو محتويات څه دي؟**

په ټولنيزو – عاطفي مهارتونو کې دغه برخې شاملې دي:

۱. د زده کوونکو ذهن وده کوي چې له دې سره به دوی په ښوونځي او ژوند کې بريالي شي. (ذهني وده).

۲. د زده کوونکو د عاطفي وړتياوو او پوهې وده چې خپل احساسات او عواطف وپېژني او کنټرول يې کړي (د احساساتو او عواطفو کنټرول)

۳. زده کوونکي به له نورو سره د اړيکو په جوړولو کې تکړه شي. ملګري به پيدا کړي، خپل احساسات به کنټرول کړای شي او له منفي عکس العملونو څخه به ډډه وکړي (مثبتې ټولنېزې اړيکې)

٤. د شخړو او منازعاتو حل؛ زده کوونکي به دا زده کړي چې څنګه اختلافونه او شخړې په مناسبه او معقوله توګه حل کړي. (د شخړو او اختلافونو د هوارې مهارتونه)

۵. د استقامت او مبارزې مهارت؛ زده کوونکي به زده کړي چې د ځان لپاره هدفونه وټاکي او په سختو او بېړنيو شرايطو کې هم له کار او مبارزې لاس وانه خلي او مثبته نتيجه به ترلاسه کړي.

**د ټولنيزې - عاطفي زده کړې د مفاهېمو او بېلګو لنډ جدول**

| وړتياوې | تعريف | بيلګې |
|---|---|---|
| ذهني وده | د مهارتونو هغه مجموعه ده چې راسره مرسته کوي چې فکري تمرکز ولرو، لارښوونې په ياد وساتو، په عين وخت کې ګڼ کارونه داسې تنظيم کړو چې په ټولو پسې ورسېږو، د خپل نږدې او لرې راتلونکې لپاره پلان جوړ کړو، منفي فکرونه له ذهنه وباسو او خپل احساسات او هيجان قابو کړو. | د غوږ نيولو مهارتونه، فکري تمرکز، لارښوونو ته پام کول، د يوه کار د پړاوونو او معلومات منطقي تنظيم، او له حافظې څخه کار اخيستل. |
| د کنټرول احساس | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې راسره مرسته کوي چې خپل احساسات او عواطف درک کړو او ويې پېژنو او کنټرول يې کړو. د کنټرول احساس موږ ته هغه اسباب او لارې چارې راښيي چې د خپلو عواطفو په اړه وړاندوينه وکړو او کنټرول يې کړو. | د احساساتو او عواطفو پېژندل، د احساساتو او عواطفو وړاندوينه، د احساساتو کنټرول لکه: ژوره ساه اخيستل، د عددونو شمېرل. |

| | | |
|---|---|---|
| مثبت ټولنیز مهارتونه | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې راښیي، څنګه د نورو احساسات او سلوک درک کړو او له دې لارې ورسره ښې اړیکې وپالو. په دې سره به ملګرتیا جوړه شي او ستونزې به ختمې شي. | د نورو د احساساتو درک کول او منل، د زړه سوي او ترحم زیاتېدل، او پر ډله‌ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل. |
| د شخړې د هوارولو مهارتونه | دغه مهارتونه راسره مرسته کوي چې شخړې او ستونزې له رامنځته کېدو سره سم، په مثبت او منطقي ډول هوارې کړو. دا ډول مهارتونه پر خلکو د شخړو اغېزه کموي او مثبتې نتیجې رامنځته کوي. | د ستونزو پېژندل او په ګوته کول، شخړو ته د حل لارو پیدا کول او د شخړې د حل لارو سم عملي کول. |
| هڅه او استقامت | د مهارتونو دغه مجموعه موږ ته دا وړتیا راکوي چې د ستونزو او ننګونو پر وړاندې ودرېږو او د خپلو موخو پر لور پیاوړي او کلک ګامونه پورته کړو. د دې مهارتونو لاسته راوړل راښیي چې د زده کړې ټوله دوره ډېر زیار او کوښښ ته اړتیا لري. که خپل هدف ته په آسانۍ نه شو رسېدلی، نو باید ورته کلک استقامت وکړو او د ستونزو د حل لپاره مرسته وغواړو. | د تصمیم نیولو له مهارتونو څخه ګټه اخیستل،<br>د هدف ټاکل او تنظیمول، د خپل هویت تثبیتول. هڅه او هلې ځلې کول.<br>- له نورو څخه مرسته غوښتل. |

**حسن خط**

په لومړي او دویم ټولګي کې زده کوونکي د حسن خط له مفرداتو سره یعنې په جلا او ګډه توګه به د نسخ خط د تورو له لیکلو سره بلدېږي او همدارنګه د قلم نیولو او له مشواښۍ څخه د ګټې اخیستلو لارې چارې (طریقې) زده کوي.

په دې ټولګیو کې زده کوونکو ته ښودل کېږي چې په کړکي یا نی سره د نسخ خط توري ولیکي او د کُرسي خط پر مخ د تورو حرکت او ترکیبونه په دقیقه توګه زده کړي، نو په درسي پلان کې باید ور څخه کار واخیستل شي.

د یادونې وړ ده چې د ښکلي خط لیکل له مشق او تمرین سره مستقیمه اړیکه لري.

څومره چې مشق او تمرین ډېر ترسره شي، په هماغه اندازه خط ښکلی، جالب او ښه کېږي.

ښکلی خط لیکل یو هنر دی. تاسو کولای شئ له زده کوونکو سره د هڅو او کوښښونو په پای کې دا هنر زده کوونکو ته ورزده کړئ او د هېواد د هنر او فرهنګ په ډګر کې اوچت ګامونه پورته کړئ.

**د ښکلي خط لیکلو هنر**

د خط لغوي معنا ده: پر کاغذ او نورو شیانو د قلم اثر یا نښه.

خط په لغت کې د قلم په واسطه لیکلو ته وایي. د هنر د پلویانو او د قلموالو له نظره د تورو د ښو او انځورونو لیکل دي چې په جملو او کرښو کې یې معنا په پام کې نیول شوې او د انسان د پټو غوښتنو څرګندونه هم کوي. یا په بل عبارت: خط د لاس ژبه ده، د انسانانو د زړه او دماغ د پیغام رسوونکی او امانت دی یعنې هغه مال چې په امانت ډول چا ته ایښودل کېږي. د خط د ارزښت په اړه باید یادونه وکړو چې که خط نه وای، نو په نړۍ کې به آثار هم نه وو.

باالاخره؛ خط د اسرار څرګندونکی، د اختیار د پیدا کولو سر چینه او د آثارو ساتونکی دی.

اوس به وګورو چې د ښکلي خط لیکلو فن یا هنر څه شی دی؟

د ځینو پوهانو له نظره د خطاطۍ هنر ښکلي لیکل دي او ځینې یې د یادولو او زده کړې وړ صنعت او هنر بولي.

**د حسن خط وسایلو پېژندنه:**

**د خطاطۍ کاغذ(ګلاسه):** هغه کاغذ دی چې شفاف او نسبتاً ښوی (لشم) وي او د کړکي قلم پرې په آسانۍ سره وځغلي او رنګ نشر نه کړي. د خطاطۍ د کاغذ (ګلاسه) د نشت والي په صورت کې زده کوونکي کولای شي د عادي کاغذ پر مخ مشق وکړي.



**د کړکي قلم:** کله چې دورمې(نی) ښې پخې شي، بيا ترې د کړکي قلم جوروو چې ښه جوړ يا سر شي، ترڅو د قلم د ليکلو څوکه ژر خرابه نه شي. د خطاطۍ لپاره داسې کړکی وټاکئ چې اوږد وي او بندونه و نه لري او يا يې بندونه په وروستۍ برخه کې وي، ځکه چې بندونه د لاس د آزار سبب ګرځي. 

**قلم توږونکی:** يو ځانګړی چاقو دی، تيغه يې يو څه نازکه او د تېغې شايې نرۍ وي 
چې قلم په ښه توګه وتوږلی شي.

**پرې کوونکی:** ډېره کلکه وسيله ده چې له کلک لرګي او يا د ځارويو له ښکر او په ځانګړي ډول د غرڅې له ښکر څخه جوړېږي چې د قلم د نوکې لاندې ايښودل کېږي او قلم پرې قطع يا پرې کېږي. 

**ليقه:** د اليافو له جريو، وريښمو او يا د خامک ګنډلو له سُنډو څخه لاسته راځي، خو لومړی بايد پر اوبو او صابون پاک پرېمينځل شي چې کيمياوي مواد يې له منځه لاړ شي او تر وچېدو وروسته په بوتل کې ځای پر ځای کېږي. ليقه د رنګ له چپه کيدو د کاغذ پرمخ د قلم د رنګ زياتوالي، د لاس او جامو د ککړيدو مخنيوی کوي. 

د يادونې وړ ده چې له مالوچ څخه په ليقه کې ګټه وا نه اخيستل شي، ځکه چې واړه تارونه يې د قلم په څوکې پورې نښلي او د ليکلو په وخت کې مزاحمت کوي.

**سيايي:** هغه رنګ دی چې د مشق کولو لپاره ترې ګټه اخيستل کېږي او په بازار کې د کړکي قلم د سيايي په نوم يادېږي. په پخوا زمانو کې خلکو سيايي له ترکيبي موادو څخه لاسته راوړه چې له همدې کبله د مرکب په نوم هم يادېږي.

**مشواڼی:** هغه بوتل دی چې (سيايي او ليقه) په کې اچول کېږي. بايد داسې بوتل وټاکو چې خوله يې د نورو بوتلونو په نسبت لويه وي.



**ځلور خطونه:** در تورو د ترتيب، تنظيم او صحيح ليکلو لپاره په کارول کيږي چې د ځلورو خطونو څخه دريم خط يې د کُرسي خط په نوم يادېږي، چې توری د همدې خط پورته او کښته ليکل کيږي لکه:




**د کُرسي خط:** هغه مستقيم افقي خط دی چې د پنسل او خط کش په واسطه تت او کم رنګه ايستل کېږي چې خط پرې سم وليکل شي.

محترمو ښوونکو! لومړی له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د مشق کتاب، د کړکي قلم او مشواڼۍ له ځان سره ټولګي ته راوړي او هغوی وپوهوئ چې د مشق تمرين دې د تمرين په کتابونو کې ترسره کړي. هغوی ته ووايئ چې په درسي کتاب کې له ليکلو څخه په کلکه ډډه وکړي.

همدارنګه هغوی ته لارښوونه وکړئ چې خپل قلمونه دې له مشق کولو څخه وروسته پاک کړي چې د لاسونو او

کالیو د ککړتیا سبب نه شي. د زده کوونکو قلمونه سر (توږل/جوړ) کړئ او د قلم د جوړولو لپاره په لاس د چاقو اخیستلو څخه هغوی منع کړئ. ځکه چې د چاقو اخیستل د ماشومانو لپاره خطر ناک دي، زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له مشق کولو څخه مخکې، لومړی د کتاب سر مشق ښه وګوري چې سترګې یې د تورو له شکلونو سره آشنا شي، وروسته بیا د قلم په واسطه د کتاب د سر مشق له مخې تمرین تر سره کړئ.

**سر مشق:** هغه لیک دی چې ښوونکی یې لیکي او زده کوونکي د هغې له مخې مشق تمرین کوي. د حسن خط په مضمون کې سر مشق هغه بېلګو ته وایي چې د زده کوونکو د تمرین لپاره په پام کې نیول شوي دي. د تورو د لیکلو حرکتونه پر غشو ښودل شوي دي چې هر حرکت یوه شمېره لري او د توري د لیکلو حرکتونه په ګوته کوي.

ښوونکی دې زده کوونکو ته د لیکلو پر مهال د تورو حرکتونه په تخته یا د تمرین په کتابونو کې وروښیي چې هغوی هم توري په هماغه ډول ولیکي.

با بت بج بد بر

ښوونکی دې د حُسن خط د درسي ساعت اړوند ټول فعالیتونه ( مقدماتي فعالیتونه ۵ دقیقې، د درس ویلو فعالیت ۳۵ دقیقې او ارزونه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې) په سمه توګه عملي کړي.

**د حسن خط عمومي موخه:** د حسن خط مضمون له تدریس څخه موخه داده چې زده کوونکي وکولای شي د نسخ خط د خطاطۍ او ښکلي لیکلو له طرز، اصولو او قواعدو سره آشنا او هغه په سمه توګه زده کړي او په ورځنۍ ژوند کې ورڅخه عملاً ګټه واخلي.

د لومړي ټولګي د حسن خط مضمون د زده کړې موخې:

- زده کوونکي د حسن خط له وسایلو، لکه مرکب (رنګ) « د ښکلي لیکلو لپاره ځانګړي مواد دي چې په دوه ډوله (وچ او لانده) په بازار کې موندل کېږي»، نی قلم او یا (پنسل او خودکار) څخه په سمه توګه کار واخلي.
- زده کوونکي په نسخ خط سره د کرسي خط پر مخ د توري/تورو ځایونه او جهتونه په پام کې نیسی او په ښکلې بڼه یې خطاطي کوي
- زده کوونکي توری/توري په نسخ خط او د خطاطۍ د اصولو او قواعدو په پام کې نیولو سره په ښکلې بڼه لیکې.

**د لومړي ټولګي د حسن خط د تدریس مېتودولوژي:**

په لومړي ټولګی کې د حسن خط مضمون د تدریس لپاره د تدریجي لېږد ( « زه یې تر سره کوم» چې په دې پړاو کې زیاتره درسی فعالیتونه د ښوونکي له خوا تر سره کیږي، « موږ یې تر سره کوو» درسي فعالیتونه د ښوونکي او زده کوونکو له خوا په ګډه تر سره کیږي، « تاسو یې تر سره کوئ» زیاتره درسي فعالیتونه د زده کوونکو له خوا تر سره کیږي.) له مېتودولوژۍ څخه ګټه اخیستل کیږي. د دې مېتودولوژي په ښه کارولو سره لومړی ښوونکی زده کوونکو ته د تدریس اړین فعالیتونه تر سره کوي او بیا په تدریجي توګه د تدریس او زده کړې فعالیتونه له ښوونکي څخه د زده کوونکو خوا ته لیږدول کیږي، چې هغوی سمه زده کړه وکړای شي او لازم معلومات او قابلیتونه تر لاسه کړي.

| زه یې ترسره کوم | موږ یې ترسره کوو | تاسو یې ترسره کوئ |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرین د مشق او تمرین په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرین کتاب له اړوند لوست څخه توری ولولي. زد ه کوونکی د ( ل ) توری لولي.<br>- ښوونکي لومړی د تختې پر مخ د کرسي خط رسم کوي.<br>- ښوونکي دې د کرسي خط پر مخ د ( ل ) توری ولیکي.<br>ل<br>- ښوونکی زده کوونکو ته د (ل) توری د لیکلو د ځای او جهت په اړه چې د کرسی خط پر مخ، پورته او یا کښته واقع دي، توضیحات ورکوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته روښانه کوي چې ځینې توري د کرسي خط پر مخ، ځینې توري د کرسي خط پورته خوا ته او ځینې توري بیا د کرسي خط ښکته خوا ته راځي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د مشق او تمرین په کتابونو کې د توري یا تورو جهتونه په ګوتو او یا پنسلونو سره وڅاري او ویې لیکي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د مشق او تمرین په کتاب کې د رنګ او نی قلم په کارولو سره د ( ل ) توری د کرسی خط پر مخ ولیکي.<br>- زده کوونکي د تمرین په کتاب کې د توري/تورو لیکل تمرین کوي او ښوونکي له هغو زده کوونکو سره چې ستونزي لري مرسته کوي . | - ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرین د مشق او تمرین په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرین له کتاب څخه د اړونده لوست توری ولولي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې زه اړونده توری د کرسي خط پر مخ لیکم، تاسو به د کرسی خط پر مخ د دې توري ځای او جهت را ته ووایئ.<br>- زده کوونکي توری د کرسي خط پر مخ د هغه د ځای او جهت په پام کې نیولو سره د تمرین په کتابونو کې په ښکلي خط لیکل تمرین کوي.<br>- ښوونکی د زده کوونکو کار څاري او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزي لري | - ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرین د مشق او تمرین په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د مشق او تمرین په کتابونو کې د اړونده لوست توری/توري د کرسي خط پر مخ تمرین کړي.<br>- زده کوونکي د کرسي خط پر مخ د توری/ توري د هغوی د ځایونو او جهتونو په پام کې نیولو سره خطاطي کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي د لارښوونو سره سم د مشق او تمرین په کتابونو کې توری/ توري خطاطي کوي.<br>- ښوونکی په ټولګي کې د زده کوونکو کار څاري او د اړتیا په وخت کې له هغوی سره مرسته کوي. |

**یادونه:**

۱. محترم ښوونکي دې د تورو د خطاطۍ مشق او تمرین لپاره کټ مټ پورتني ټول مراحل چې د تورو د خطاطۍ د مشق او تمرین لپاره تشریح شول، په پام کې و نیسي.

۲. زده کوونکي باید د حسن خط په مضمون کې د تورو د خطاطۍ د مشق او تمرین په وخت کې له نی قلم او مرکب (رنګ) څخه کار واخلي.

۳. د ښکلو لیکلو د تمرین په وخت کې مناسب ځای د لیکلو لپاره انتخاب کړئ چې پوره رڼا ولري او همدا شان ستاسو سترګې له هغه کاغذ څخه چې خطاطي پرې کوئ د (۳۰) سانتی مترو په شاوخوا کې فاصله ولري.

**د لوستلو د مرستندویه موادو د کارولو لارښود**

د لوستلو مرستندویه مواد د زده کړې هغه توکي دي چې د ټولګي او د زده کوونکو د سویې پر بنسټ جوړ شوي دي چې د هغوی د لوستلو مهارتونه پیاوړې کړي. د لوستلو مرستندویه مواد د زده کوونکو د لوستلو مهارتونو ته وده ورکوي، هغوی لوستلو ته هڅوي او همدارنګه په هغوی کې د لوستلو روحیه پیاوړې کوي.

ښوونکی دې په ټولګي کې د لوستلو مرستندویه مواد د لاندې لارښونو سره سم وکاروي چې له دې توکو څخه سمه ګټه پورته شي او د زده کوونکو د لوستلو مهارتونه پیاوړي شي.

**الف: د ټولګي د کتابتون تنظیمول**

۱. ښوونکی دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د کتابتون په نوم، لیبل او مهر سره په نښه کړي.
۲. ښوونکی دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د ټولګي، سمستر، سویې او اونۍ پر بنسټ تنظیم کړي.
۳. ښوونکی دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د عنوان یا موضوع پر اساس هم تنظیم کړئ.
٤. ښوونکی دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د لاندې نمونه یې فورمې په څېر لست او ثبت کړي.

**ټولګی:** لومړی **د ټولګي د کتابتون نوم:** غازي امان الله خان **نېټه:** ۱۰/۹/۱۳۹۸

| شمېره | د کتاب نوم | د کتاب موضوع | لیکونکی | تعداد |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | پاکې مېوې | صحت | محمد سهراب دیدار | ۲۲ |
| ۲ | | | | |

۵.ښوونکی دې د لوستلو مرستندویه کتابونو باکس یا الماری په ټولګي کې په داسې ځای کې کېږدي چې ټولو زده کوونکو ته د لیدو وړ، خوندي او د لاسرسي وړ وي.
٦.ښوونکی باید د درسی ساعت په پای کې د ټولګي کتابتون (د لوستلو د مرستندویه کتابونو پلاستیکي باکس) په یوه خوندي ځای لکه د ښوونځي کتابتون، د ښوونځي اداري او یا په بل هر خوندي ځای کې کېږدي او د بل درسي ساعت په پیل کې له هغه ځای څخه یې راواخلي او ټولګي ته یې له ځان سره یوسي.
۷.کله چې ښوونکی د لوستلو مرستندویه کتابونه زده کوونکو ته د لوستلو لپاره ویشي، هغوی دې د لاندې نمونه یې فورمې په څېر راجستر کړي.

**ټولګی:** ________ **د ټولګي د کتابتون نوم:** ________ **کال:** ________ **اونۍ:** ________

| شمېره | د کتاب نوم | ټولګی | د اخیستلو نېټه | د سپارلو نېټه | لا سلیک / د ګوتې نښه | د ګټې اخیستونکي نوم: زده کوونکی | د ګټې اخیستونکي نوم: نورګټه اخیستونکی | ملاحظات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | پاکې مېوې | لومړی | ۱٦/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | معصومه | | |
| ۲ | پاکې مېوې | لومړی | ۱٦/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | محمود | | |

**ب: د لوستلو د مرستندویه کتابونو کارول**

۱.د لوستلو د مرستندویه کتابونو د کمښت په صورت کې دې ښوونکی زده کوونکي د کتابونو د شمېر پر اساس په ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې د اونۍ د ورځو په جریان کې په نوبت سره کتابونه د لوستلو لپاره ورکړي چې په دې توګه به ټول زده کوونکي وکولای شي د صنف، سمستر، سویې او اونۍ اړونده کتابونه ولولي.
۲. ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوستلو مرستندویه کتابونه په کورونو کې ولولي. سم ساتلو ته یې دې پام وکړي چې خراب نه شي او په ټاکلي وخت یې بېرته ښوونکي ته وسپاري.
۳. ښوونکی دې د هرې اونۍ په تکراري ورځو (پنځمه او شپږمه ورځ) کې د متن له بیا لوستلو څخه وروسته له څو زده کوونکو څخه د لوستل شوي کتاب په هکله ځینې پوښتنې وکړي، لکه:

- په کتاب کې مو څه ولوستل؟
- په کتاب کې مو څه شی خوښ شو او څه شی مو د خوښې وړ نه و او ولې؟
- د کتاب په لوستلو کې له څه ډول ستونزو سره مخ شوئ؟
- آیا تاسو په خپل ژوند کې له داسې پېښو سره مخ شوي یاست، بیان یې کړئ؟

**یادښت:** ښوونکی دې هغو ماشومانو ته د لوستلو لپاره یوه سویه یا اونۍ ټیټ کتاب ورکړي چې د لوستلو مرستندویه کتاب په لوستلو کې ستونزې لري او یا هم ورته آسانه نه وي. دا مهم ده چې زده کونکي باید د خپلې سویې سره سم او مناسب کتاب ولولي او په دې سره یې د لوستلو مهارت پیاوړی شي. خو که چیرې ماشومانو ته د لوستلو د مرستندویه کتاب متن آسانه اوساده وي، تاسو ورته یوه سویه جګ کتاب ورکړئ.

## عقیدتي برخه

موخې

د دې برخې په پای کې به زده کوونکي دغه شیان زده کړي:

۱. د الله(جل جلاله) د پاک ذات په باره کې به معلومات پیدا کړي.

۲. دا به زده کړي چې هر ښه کار به د الله(جل جلاله) په نوم سره پیلوي.

۳. د الله(جل جلاله) په یووالي او قدرت باندې به زیات باور پیدا کړي.

محترمو ښوونکو!

د درسي کتاب پاڼه پرانیزئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د (و) مخ ته ځیر شي او پوښتنه وکړئ:

- په انځور کې څه شی وینئ؟

له زده کوونکو سره د پوښتنې په ځواب کې مرسته وکړئ، وروسته سم ځواب ورته ووایئ.

زده کوونکو ته څرګنده کړئ چې:

الله جَلَّ جَلَالُهُ یو دی. شریک او ساری نه لري.

الله جَلَّ جَلَالُهُ زموږ او ټولو موجوداتو لکه لمر، سپوږمی، ستورو، ځمکې، آسمان او .... خالق او پیدا کوونکی دی.

موږ د الله جَلَّ جَلَالُهُ عبادت کوو.

لاندې پوښتنې وکړئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي.

۱. موږ ولې د الله(جل جلاله) عبادت کوو؟

۲. الله(جل جلاله) کوم شیان پیدا کړي دي؟



**لومړۍ اونۍ** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** زموږ ښوونځی **توري:**

### د اونۍ د زده‌کړې موخې

د دې اونۍ په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:
۱. - کتاب خلاص او بند کړي او پاڼې یې واړوي.
۲. - ورته انځورونه پیدا کړي.
۳. - د کتاب له نمونو سره سمې کرښې رسم کړي.
٤. - د اورېدلو او لوستلو کیسو د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ووایي او یو شی رسم کړای شي.
۵. زده کوونکي د حسن خط له وسایلو سره بلد شي او د ټکو موقعیتونه وپېژني.

### ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه

- په ترتیب سره کارونه ترسره کړي.

### د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه

- زده کوونکو ته له کتاب او قلم څخه د کار اخیستلو لارې وروښیئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې مشابه او متفاوت انځورونه سره بېل کړي.
- له زده کوونکو سره د کرښو په ایستلو کې مرسته وکړئ.
- د اورېدلو کیسه په داسې غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ چې د زده کوونکو پام ځانته را واړوئ او وکولی شي د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ووایي.
- له ځینو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرین، شاباش، ډېرښه، مننه، کولای شئ... په کارولو سره د زده کوونکو پام ځانته را واړوئ او په ټولګي کې د زده کړې یو فعال او مناسب چاپېریال رامنځ ته کړئ.
- ښوونکی دې په دې اونۍ کې زده کوونکي وهڅوي چې کارونه په ترتیب سره ترسره کړي.

### د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

**زموږ ښوونځی**

**ښوونکې** ورمه ټولګي ته راغله ویې ویل:*

مروه تېر کال په **ښوونځي** کې شامله شوه. لومړۍ ورځې وې. دا مې ولیده چې په **انګړ** کې ها خوا دې خوا ګرځي. پوښتنه مې ځنې وکړه: مروې ګلې! په څه پسې ګرځې؟



هغې ویل: تږې یم.

د اوبو ځای مې ور وښود.

مروې چې اوبه وڅښلې، بېرته خپل ټولګي ته ولاړه. ورمې خپلو شاګردانو ته وویل**: راځئ چې تاسو ته هم د اوبو ځای او تشنابونه دروښییم. ګورئ! په دهلېزونو کې به منډې نه وهئ او شور به نه کوئ چې نور زده کوونکي له درسونو و نه باسئ.

### د زده کړې موخې

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:
- کتاب خلاص او بند کړي او پاڼې یې واړوي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونو سره سمې کرښې رسم کړي.
- د اوریدلو او لوستلو کیسو د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ووایي او یو شی رسم کړای شي.

### د لوست پیل (۵) دقیقې

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

### د کتاب خلاصول او بندول (۷ دقیقې)

تشریح: زده کوونکي د خپل کتاب خلاصول او بندول زده کوي.

۱. ښوونکی: دا کتاب دی (کتاب پورته ونیسئ او ورته اشاره وکړئ). دا د کتاب پوښ دی (د کتاب پوښ ته اشاره وکړئ). پر دغه پوښ د کتاب نوم لیکل شوی دی. د لوستلو لپاره باید کتاب پرانیزو. وګورئ زه اوس کتاب خلاصوم.

۲. ښوونکی: کله چې د کتاب لوستل ترسره شول، کتاب بندوو. وګورئ زه کتاب بندوم (کتاب بند کړئ).

۳. ښوونکی: اوس دا فعالیت په خپله تر سره کړئ.

### د پاڼې اړول (۳ د قیقې)

تشریح: زده کوونکي د پاڼې اړول زده کوي

۱. د کتاب د متن لومړۍ پاڼه پرانیزئ

۲. ښوونکی: دا یوه پاڼه ده. (پاڼې ته اشاره وکړئ) دا زموږ د کتاب لومړۍ پاڼه ده.

۳. ښوونکی: هر مخ یا هره پاڼه ځینې معلومات لري، یا هم د کیسې یوه برخه څرګندوي. کله چې د لومړۍ پاڼې لوستل پای ته رسوم، باید پاڼه واړوم چې نور معلومات یا د کیسې نورې برخې وګورم. وګورئ زه څرنګه پاڼه اړوم.

٤. ښوونکی: اوس یې باید په ګډه ترسره کړو. (راتلونکې پاڼې ته اشاره وکړئ) موږ دې ته څه وایو؟ (ښوونکی او زده کوونکي) «پاڼه» ښوونکی کله چې د دې دوو



پاڼو لوستل پای ته ورسوو باید څه وکړو؟(ښوونکی او زده کوونکي) «پاڼه اړوو»

۵. راځئ چې په ګډه پاڼه واړوو. (ښوونکی او زده کوونکي پاڼه اړوي)

٦. اوس یې تاسو یوازې ترسره کړئ. کله چې زه ووایم پاڼه واړوئ، تاسو به پاڼه واړوئ.

۷. ښوونکی: پاڼه واړوئ! (زده کوونکي پاڼه اړوي) ښوونکی (د پاڼې اړولو په حالت کې وایي) زه څه کوم؟ (زده کوونکي تاسو پاڼه اړوئ).

### د ورته انځور پیدا کول (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو زده کوونکو ته د لیدو وړ وي، بیا د انځورونو لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.

۲. زده کوونکو ته ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي.

وروسته بیا وواياست چې ما ورته انځور پیدا کړ.
۳. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
٤. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.

**په ګوتې د کرښو ښارنه(۵)دقیقې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.
۲. هغوی ته ښاياست چې کومه پاڼه باید راواړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو سم مخ را اړولی دی.
۳. زده کوونکو ته وواياست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
٤. هغوی ته وواياست چې زه به اوس لومړۍ کرښه پر تختې وکاږم. (لومړۍ کرښه رسم کړئ)
۵. له زده کوونکو وغواړئ چې په کتاب کې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښاياست چې کرښه چېرته ده.)
٦. زده کوونکو ته وواياست چې هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ځارل زده کړي.
۷. پر تختې باندې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښاياست چې څه وکړي.
۸. له زده کوونکو وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ځارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده کوونکي یې له سم ځای پیل کړي.
۹. پرېږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.
۱۰. زده کوونکو ته وواياست چې راتلونکې کرښې ته په خپلې ګوتې سره اشاره وکړي. وواياست چې له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وځاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت ترسره کوي، په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۱۱. هغوی ته وواياست چې راتلونکې کرښه وځاري.
۱۲. هغوی ته وواياست چې په خپلو کورونو کې یې هم تمرین کړي.

**د پنسل د نیولو څرنګوالی (۵) دقیقې**

۱. زده کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده کړي او لیک وکړای شي.

**د اورېدلو کیسه:(۱۵ دقیقې)**

**د کیسې له اورېدلو مخکې**

لغتونه:
۱. زده کوونکو ته وواياست چې زه به تاسوته یو متن ولولم.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې د دې متن (کیسې) د اورېدلو لپاره چمتو واوسي.
۳. زده کوونکو ته وواياست اوس به د دې متن د ځینو مهمو کلمو(لغتونو) په اړه خبرې وکړو.
۴. زده کوونکو ته وواياست چې لومړی لغت ښوونکی دی. هغوی ته وواياست چې له تاسو وروسته لغت درې ځلې ولولي.
۵. پوښتنه وکړئ چې **ښوونکې** چاته ویل کېږي. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب درکړي چې ښوونکي چا ته وايي؟
٦.د ښوونکې د کلمې لنډ تعریف وکړئ چې ښوونکې یا معلم هغه څوک دی چې زده کوونکو ته ښوونه او روزنه ورکوي. (له تصویرونو او حرکتونو څخه ګټه واخلئ چې د کلمې دمعنا په پوهېدلو کې مرسته وکړي).
۷.د لاندېنیو لغتونو لپاره هم ورته کار ترسره کړئ:
**ښوونځی(مکتب) انګړ( حویلی، سرای)**

**د انځور په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه:**

۱. زده کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د کیسې په اړه انځورونو ته وګوري.
۲. د انځور په اړه له هغوی سره بحث وکړئ (دغه انځور ته وګورئ او وواياست چې څه وینئ) پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب درکړي. که اړتیا وي، له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې، نور څه وینئ؟
۳. خلاصه یې کړئ چې تاسو او زده کوونکو په انځور کې څه لیدلي دي؟

۴. زده‌کوونکو ته ووایاست د کیسې عنوان (زموږ ښوونځی) دی.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس خو مو ولیدل چې په انځور کې څه دي او د کیسې په عنوان هم پوه شوئ، تاسې څه فکر کوئ چې کیسه به د څه په اړه وي. پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي. هغوی ته ځواب مه ورکوئ. هغوی ته ووایاست چې اوس کیسه درته لولم تاسو ورته غوږ شئ چې وړاندوینه مو سمه ده که نه؟

**د کیسې اورېدلو په حال کې**

۱. کیسه په واضح غږ، مناسب لحن او حرکتونو سره بیان کړئ. په کیسه کې د پېښو په اړه له اشارو او حرکتونو څخه کار واخلئ چې زده‌کوونکي وپوهېږي چې څه پېښېږي. که چیرې اصلي کرکټر ځینې کړنې او حرکتونه تر سره کوي، بیا نو پرېږدئ چې زده‌کوونکي هم هغسې کړنې او حرکتونه تر سره کړي.

۲. کله چې کیسه لولئ په دوو ځایونو کې یو ځل ځنډ کوئ او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوئ: څه فکر کوئ چې له دې وروسته به په کیسه کې څه پېښ شي؟ یا ولې داسې وشول؟

* څه فکر کوئ چې وړمې ښوونکې به خپلو زده‌کوونکو ته څه ویلي وي؟

** څه فکر کوئ وړمې ښوونکې به نور څه ویلي وي؟

۳. کیسه دوه ځلې ولولئ.

**له اورېدلو وروسته:**

۱. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه وه که نه؟( هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کیسې په اړه در څخه ځینې پوښتنې کوم.

۳. هغوی ته ووایاست: لومړۍ پوښتنه دا ده چې: **وړمه ځوک وه؟**

زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې له کیسې سره سم ځواب ورکړي. (ځواب: **وړمه ښوونکې وه.**)

۴. دویمه پوښتنه: **څوک تړې وه؟**

ښوونکې دې له زده‌کوونکو وغواړي چې که څوک پوهېږي، لاسونه دې پورته کړي.

۵. پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل ځواب له نژدې ملګري سره شریک کړي. وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګي سره خپل ځواب شریک کړي. (**ځواب: مروه تړې وه.**)

٦.ذهني پوښتنه: **هغه زده کوونکي چې نوی ښوونځي ته راځي د ښوونځي په اړه کومو معلوماتو ته اړتیا لري؟** زده‌کوونکو ته ووایئ چې څه ډول ځواب پیدا کولای شئ؟

۷.پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل نظرونه سره شریک کړي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

**– ارزونه:**

- ښوونکی دې له خپل تدریس څخه د ډاډ تر لاسه کولو او ارزونې لپاره لاندې پوښتنې وکړي:
- د انځورونو په برخه کې ورته انځور پیدا کولای شئ؟
- کتاب سره سمې کرښې ترسیم کړئ.
- که د ښوونځي په دهلیز کې په لوړ اواز خبرې وکړو څه به پېښ شي؟

**– کورنۍ دنده:**

- زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرین په کتاب کې کرښې رسم کړي.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:
- کتاب خلاص او بند کړي او پاڼې یې واړوي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**د کتاب خلاصول او بندول (۷ دقیقې)**

-تشریح: زده کوونکي د خپل کتاب خلاصول او بندول زده کوي.

۱.ښوونکی: دا کتاب دی (کتاب پورته ونیسئ او ورته اشاره وکړئ). دا د کتاب پوښ دی (د کتاب پوښ ته اشاره وکړئ). پر دغه پوښ د کتاب نوم لیکل شوی دی. د لوستلو لپاره باید کتاب پرانیزو. وګورئ زه اوس کتاب خلاصوم.

۲.ښوونکی: کله چې د کتاب لوستل تر سره شول، کتاب بندوو. وګورئ زه کتاب بندوم (کتاب بند کړئ).

۳.ښوونکی: موږ نشو کولای چې له دې وروسته د کتاب منځ وګورو. موږ یوازې د کتاب پوښ لیدلی شو. (یو ځل بیا پوښ ته اشاره وکړئ).

٤.ښوونکی: راځئ چې په ګډه کوښښ وکړو. لومړی پوښ ته اشاره وکړئ (زده کوونکي د کتاب پوښ ته اشاره کوي)

٥.ښوونکی: د کیسې د لوستلو لپار باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده کوونکي کتاب پرانیزو).

٦.ښوونکی: کله چې لوستل سرته ورسوو، باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده کوونکي کتاب بندوو)

٧.ښوونکی: کله چې کتاب بند شي، کولای شو چې کیسه ولولو؟ (زده کوونکي: نه!)

٨.ښوونکی: اوس دا فعالیت په خپله تر سره کړئ.

٩.ښوونکی: کتاب بند کړئ (زده کوونکي کتاب بندوي).



**د پاڼې اړول (۳ د قیقې)**

**تشریح:** زده کوونکي د پاڼې اړول زده کوي

۱. د کتاب د متن لومړی پاڼه پرانیزئ

۲. ښوونکی:دا یوه پاڼه ده. (پاڼې ته اشاره وکړئ) دا زموږ د کتاب دویمه پاڼه ده.

۳. ښوونکی: هره پاڼه ځینې معلومات لري، یا هم د کیسې یوه برخه څرګندوي. کله چې زه د دویمې پاڼې لوستل پای ته ورسوم، باید پاڼه واړوم، وګورئ زه څرنګه پاڼه اړوم.

٤. ښوونکی: اوس یې باید په ګډه ترسره کړو. (راتلونکې پاڼې ته اشاره وکړئ) موږ دې ته څه وایو؟ (ښوونکی او زده کوونکي: «پاڼه») ښوونکی: کله چې د دوو پاڼو لوستل پای ته ورسوو باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده کوونکي: «پاڼه اړوو»).

٥. راځئ چې په ګډه پاڼه واړوو. (ښوونکی او زده کوونکي پاڼه اړوي)

۶. اوس يې تاسو يوازې ترسره کړئ. کله چې زه ووايم: پاڼه واړوئ، تاسو به پاڼه واړوئ.

۷. ښوونکی: پاڼه واړوئ!(زده‌کوونکي پاڼه اړوي) ښوونکی (د پاڼې اړولو په حالت کې وايي) زه څه کوم؟ (زده‌کوونکي تاسو پاڼه اړوئ).

### ورته انځور پيدا کړئ (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونيسي چې ټولو ماشومانو ته د ليدلو وړ وي، يا لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وينو. کولای شو، داسې انځور پيدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پيدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بيا ووایاست چې ما ورته انځور پيدا کړ.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بيا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.

٤. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعاليت تر سره کړئ.

### په ګوتې د کرښو ښارنه (۵) دقيقې

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده‌کړي.

۲. هغوی ته وښاياست چې کومه پاڼه بايد را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده‌کوونکو سم مخ را اړولی دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.

٤. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)

۵. له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته يې وښاياست چې کرښه چېرته ده؟)

۶. زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې ښارل زده‌کړي.

۷. پر تختې له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښاياست چې څه وکړي.

۸. له زده‌کوونکو وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپين ټکي) او بيا د کرښې په ښارلو سره کيڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي يې له سمه ځايه پيل کړي.

۹. پرېږدئ چې څو ځلې يې تکرار کړي.

۱۰. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري څخه يې کيڼ لوري ته وښاري او له سپين غټ ټکي څخه يې پيل کړي. کله چې هغوی فعاليت ترسره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۱. هغوی ته ووایاست چې راتلونکې کرښه وښاري.

۱۲. هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې يې هم تمرين کړي.

### د پنسل د نيولو څرنګوالی (۵) دقيقې

زده‌کوونکو ته د پنسل د نيولو ډول وښياست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نيولو طريقه زده‌کړي او ليک وکړای شي.

### انځوريزه کيسه(۱)(۱۵ دقيقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

**د انځورونو په اړه وړاندوينه**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د يوې انځوريزې کيسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲.زده کوونکو ته ووایاست چې د کيسې عنوان دی «له خوبه پاڅېدل». اوس تاسې تصويرونو ته وګورئ او فکر وکړئ چې د هر تصوير مطلب څه دی.

- د لومړي تصوير جمله: احمد خپله بستره ټولوي.
- د دويم تصوير جمله: احمد خپل غاښونه مينځي.
- د دريم تصوير جمله: اسما لمونځ کوي.

- د ځلورم تصویر جمله: احمد او اسما ورزش کوي.
- د پنځم تصویر جمله: د کورنۍ غړي سره یو ځای د سهار چای څښي.

**د انځورونو د لیدلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکي دې په کتابونو کې انځورونو ته و ګوري.
۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، پوښتنه وکړئ په لومړي انځور کې څه ګورئ؟ ډاډ تر لاسه کړئ زده‌کوونکي يې په کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې وينئ.
۳. د ۲،۳، ۴ او ۵ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.
۴. زده‌کوونکو ته وواياست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بیا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توګه ووايم چې په انځورونو کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې د انځورونو په اړه يې وړاندوينه سمه وه که نه؟
۲. زده‌کوونکو ته ووايئ چې د کيسې په اړه له تاسو ځينې پوښتنې کوم.
۳. لومړۍ پوښتنه: ماشومان کوم کارونه ترسره کوي؟ هغه زده‌کوونکي چې په ځواب پوهېږي خپل لاسونه دې پورته کړي، لومړی دې ځواب له خپل نږدې ملګري سره شريک کړي. وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړي. (ځواب: ماشومان خپله بستره ټولوي، مخ، لاس او غاښونه مينځي، لمونځ کوي او د سهار چای خوري)
٤. دويمه پوښتنه: تاسي خپل غاښونه له څه شي سره مينځئ؟ اجازه ورکړئ څوک چې په ځواب پوهېږي، خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې ځوابونه سره شريک کړي او وروسته ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړي.(ځواب له بُرس او کريم يا مسواک سره)
۵.ذهني پوښتنه: تاسو هر سهار کوم کارونه کوئ چې مکتب تللو ته چمتو شئ؟
۵. زده‌کوونکو ته وواياست چې څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او وواياست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

– **ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځور پيدا کړئ.
- د کتاب سره سمې کرښې ترسيم کړئ.
- که سهار خپل کارونه په وخت ترسره نه کړو، څه به پېښ شي؟

– **کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرين په کتاب کې کرښې رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**
د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:
- کتاب خلاص او بند کړي او پاڼې یې واړوي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**
سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**د کتاب خلاصول او بندول (۵ دقیقې)**
-تشریح: زده‌کوونکي د خپل کتاب خلاصول او بندول زده کوي.
۱.ښوونکي: دا کتاب دی (کتاب پورته ونیسئ او ورته اشاره وکړئ). دا د کتاب پوښ دی (د کتاب پوښ ته اشاره وکړئ). پر دغه پوښ د کتاب نوم لیکل شوی دی. د لوستلو لپاره باید کتاب پرانیزو. وګورئ زه اوس کتاب خلاصوم.
۲.ښوونکی: کله چې د کتاب لوستل تر سره شول، کتاب بندوو. وګورئ زه کتاب بندوم (کتاب بند کړئ).
۳. ولولو؟ (زده‌کوونکي: نه!)
٤.ښوونکی: اوس دا فعالیت په خپله تر سره کړئ.

**د پاڼې اړول (۵ دقیقې)**
تشریح: زده‌کوونکي د پاڼې اړول زده کوي
۱.د کتاب د متن لومړۍ پاڼه پرانیزئ!
۲.ښوونکی:دا یوه پاڼه ده. (پاڼې ته اشاره وکړئ) دا زموږ د کتاب دویمه پاڼه ده.
۳.ښوونکی: اوس یې باید په ګډه ترسره کړو. (راتلونکې پاڼې ته اشاره وکړئ) موږ دې ته څه وایو؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: «پاڼه») ښوونکی: کله چې د دوو پاڼو لوستل پای ته ورسوو باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: «پاڼه اړوو»).
۴.راځئ چې په ګډه پاڼه واړوو. (ښوونکی او زده‌کوونکي پاڼه اړوي)



۵.اوس یې تاسو یوازې ترسره کړئ. کله چې زه ووایم: پاڼه واړوئ، تاسو به پاڼه واړوئ.

**ورته انځور پیدا کړئ (۵ دقیقې)**
۱.ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشومانو ته د لیدو وړ وي، یا لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.
۲.زده‌کوونکو ته ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وخارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بیا ووایاست چې ما ورته انځور پیدا کړ.
۳.زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
۴.د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.

**په ګوتې د کرښو ځارنه** (۵) دقیقې

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده‌کړي.
۲.هغوی ته وښایاست چې کومه پاڼه باید را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده‌کوونکو سم مخ را اړولی دی.
۳.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
٤.هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)
٥.له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟)
٦.زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري ځخه کیڼ لوري ته د کرښې ځارل زده‌کړي.
٧.پر تختې له ښي لوري ځخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.
٨.له زده‌کوونکو وغواړئ چې خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ځارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي یې له سمه ځایه پیل کړي.
٩.پرېږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.
١٠.زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري ځخه یې کیڼ لوري ته وځاري او له سپین غټ ټکي ځخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت ترسره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
١١.هغوی ته ووایاست چې راتلونکې کرښه وځاري.
١٢.هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې یې هم تمرین کړي.

**د پنسل د نیولو څرنګوالی** (۵) دقیقې

۱. زده‌کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده‌کړي او لیک وکړای شي.

**انځوریزه کیسه** (۱)(۱۵ دقیقې)

**له لوستلو ځخه مخکې**

۱. زده‌کوونکې دې په خپل کتاب کې هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې ده.
۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست، او پوښتنه وکړئ که چیرې یې تر اوسه په یاد وي چې کیسه د څه شي په اړه وه؟پرېږدې چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

**د انځورونو دلیدلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په خپل کتاب کې د لوستلو کیسې انځورونو ته وګوري.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره کوي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ګوري په اړه یې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې وینئ.
۳. هغوی ته ووایاست چې د خپل څنګ ټولګیوالو ته د ۲، ۳، ۴ او ۵ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ویني.
۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې انځوریزه کیسه خپلو ټولګیوالو ته ووایي، کله چې دغه فعالیت سرته رسېږي باید ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته:**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس د کیسې په اړه درځخه پوښتنې کوم.
۲.هغوی ته ووایاست: لومړۍ پوښتنه دا ده چې: په دویم انځور کې احمد کوم کار کوي؟
۵. له زده‌کوونکو ځخه وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي.او ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي.
له هغه وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو ځخه وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. ځواب - احمد غاښونه مینځي.
۳.دویمه پوښتنه: په دریم انځور کې اسما په کوم

کار بوخته ده؟

راځئ وګورو که مو ځواب په یاد وي. پوښتنه وکړئ چې څوک په ځواب پوهېږي. پرېږدئ زده کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه سره شریک کړي. وروسته بیا خپل ځواب له ټولګي سره شریک کړئ. (ځواب اسما لمونځ کوي.

۴. ذهني پوښتنه: تاسو کوم کارونه ګام په ګام ترسره کوئ تر هغې پورې چې ښوونځي ته رسېږئ؟

پرېږدئ چې یو شمېر زده کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

– **ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پیدا کړئ.
- دا کرښه ترسیم کړئ.
- ښوونځي ته تلل څه ګټه لري؟

– **کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې: د تمرین په کتاب کې دې کرښې وکاږي.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

- ځینې ساده کلمې په سپلابونو ووېشي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**په سپلابونو د کلمو وېشل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست: زه به یوه کلمه درته ووایم او پر سپلابونو (هجاوو) به يې ووېشم.
۲. وواياست «ټولګی» او په سپلابونو يې ووېشئ «ټول - ګی» له هر سپلاب سره لاسونه وپړکوئ.
۳. زده کوونکو ته وواياست: اوس به دا کلمه له سره وایم او ټول به يې په ګډه په سپلابونه وېشو او له هر سپلاب سره به لاسونه پړکوو. دا کار دوه ځلې وکړئ.
٤. زده کوونکو ته وواياست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (ټولګی) په سپلابونو وېشئ.
۵. له ۲ تر ۴ پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: انګر، بابا، کاکا، ماما، ښوونځی، اوبه، تړی، انا، عمه.

**ورته انځور پیدا کړئ (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشومانو ته د لیدلو وړ وي، بیا لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.
۲. وواياست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وڅارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي ته ورته وي. وروسته بیا وواياست چې ما ورته انځور پیدا کړ.
۳. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
٤. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.



**په ګوتې د کرښو څارنه (۵) دقیقې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.
۲. هغوی ته وښایاست چې کومه پاڼه را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ ټولو زده کوونکو سم مخ را اړولی دی.
۳. زده کوونکو ته وواياست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
٤. هغوی ته وواياست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)
۵. له زده کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته چې په کتاب کې ده اشاره وکړي. (هغوی ته يې وښایاست چې کرښه چېرته ده)
٦. زده کوونکو ته وواياست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې څارل زده کړي.
۷. پر تختې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.
۸. له زده کوونکو وغواړئ چې خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په څارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې

ټولو زده‌کوونکو له سم ځای څخه پیل کړی دی.
۹.پربېږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.
۱۰.زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکي کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وځاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت تر سره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۱۱.هغوی ته ووایاست چې راتلونکي کرښې وځاري.
۱۲.هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې هم دا فعالیت تمرین کړي.

### د پنسل د نیولو ځرنګوالی (۵) دقیقې

زده‌کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده‌کړي او لیک وکړای شي.

### انځوریزه کیسه(۲) (۱۵ دقیقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

**د انځورونو په اړه وړاندوینه**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د یوې انځوریزې کیسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.
۲. ووایاست چې د کیسې عنوان «ښوونځی» دی. عنوان زده‌کوونکي فکر کولو ته هڅوي چې کیسه به د ښوونځي په اړه وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟
د لومړي تصویر جمله: زده‌کوونکي ترانه وایي.
د دویم تصویر جمله: دا زموږ ټولګی دی.
د دریم تصویر جمله: دا زموږ ښوونکی دی.
د څلورم تصویر جمله: اجمل له ښوونکي اجازه غواړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې انځورونو ته وګوري.
۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، پوښتنه وکړئ چې په لومړي انځور کې څه وینئ؟ ډاډ ترلاسه کړئ زده‌کوونکي یې په کتاب کې ګوري. پربېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې وینئ.
۳.د ۲،۳او ۴ انځور لپاره دویم پړاو تکرار کړئ.
۴.زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته یو ځل بیا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه ده توګه ووایم چې په انځورونو کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه وه که نه؟( هو/ نه)
۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کیسې په اړه له تاسو ځیني پوښتنې کوم.
۳. هغوی ته ووایاست: لومړۍ پوښتنه ده چې: په لومړي تصویر کې زده کوونکي څه کوي؟
له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. لومړی دې ځواب له خپل نژدې ملګري سره شریک کړي.
وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. وروسته سم ځواب ورکړئ (په لومړي تصویر کې زده کوونکي ترانه وایي).
۴.دویمه پوښتنه: په دویم تصویر کې زده‌کوونکي څه شي ته اشاره کړې ده؟
زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پربېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شریک کړي. وروسته بیا خپل ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړئ، ځواب په دویم تصویر کې زده‌کوونکي خپل ټولګي ته اشاره کړې ده.
۵. ذهني پوښتنه: په ټولګي کې ښه چلند کوم دی چې باید ترسره یې کړو؟
زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پربېږدئ ځیني زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. مهمه دا ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

**– ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پیداکړئ؟
- له کتاب سره سمې کرښې ترسیم کړئ؟
- ښوونځي ته تلل څه ګټه لري؟

**– کورنۍ دنده:**

- زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې: د تمرین په کتاب کې له کتاب سره سمې کرښې رسم کړي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (کړکي، مشواڼۍ او یوه ټکي د موقعیت) په اړه معلومات تر لاسه او بیان کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له خو زده کوونکو څخه د (کړکي، مشواڼۍ او یوه ټکي د موقعیت) په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(یوه ټکي موقعیت) په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- ځینې ساده کلمې په سپلابونو ووېشي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د لوستلو د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او خپله کیسه ووايي.

**د لوست پیل: (٥ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**په سپلابونو د کلمو وېشل (٥ دقیقې)**

١ . زده کوونکو ته ووایاست: زه به یوه کلمه درته ووایم او پر سپلابونو (هجاوو) به یې ووېشم.
٢.ووایاست «څوکۍ» او په سپلابونو یې ووېشئ «څو - کۍ» له هر سپلاب سره لاسونه وپړکوئ.
٣.زده کوونکو ته ووایاست: اوس به دا کلمه له سره وایم او ټول به یې په ګډه په سپلابونه وېشو او له هر سپلاب به سره لاسونه پړکوو. دا کار دوه ځلې وکړئ.
٤.زده کوونکو ته ووایاست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (ټولګی) په سپلابونو وېشئ.
٥. له ٢ تر ٤ پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: قلم، انا، کتاب، کتابچه، پاڼه، ونه، پنسل، پنسل پاک.

**ورته انځور پیدا کړئ (٣ دقیقې)**

١.ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشوماتو ته د لیدو وړ وي، بیا لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.
٢.ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بیا ووایاست ورته انځور پیدا کړ.
٣.زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
٤.د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.



**په ګوتې د کرښو ثارنه (٢ دقیقې)**

١ . زده کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.
٢. هغوی ته وښایاست چې کومه پاڼه را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو سم مخ را اړولی دی.
٣. زده کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
٤. هغوی ته ووایاست چې زه به اوس لومړۍ کرښه پر تختې وکاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)
٥. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې همغې کرښې ته په کتاب کې اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟
٦. زده کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ثارل زده کړي.
٧. پر تختې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.
٨. له زده کوونکو څخه وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ثارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده کوونکي یې له سم ځای څخه پیل کړي.
٩. پربږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.
١٠ . زده کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وثاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې

هغوی فعالیت ترسره کوی په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۱.هغوی ته ووایاست چې راتلونکې کرښې وځاري.

۱۲.هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې دا فعالیت تمرین کړي.

### د پنسل د نیولو څرنګوالی (۲) دقیقې

۱. زده‌کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده کړي او لیک وکړای شي.

### انځوریزه کیسه (۱۳ دقیقې)



**د لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکې دې د خپل کتاب د لوستلو هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې وه.

۲. هغوی ته بیا د تېرې کیسې عنوان ووایاست، او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه.

۳. پرېږدې چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځوابونه شریک کړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب انځورونو ته وګوري.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره وکړي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ویني بحث وکړئ. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ویني.

۳. هغوی ته ووایاست چې خپلو ټولګیوالو ته د ۲، ۳او ۴ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ګوري.

۴. له یوشمېر زده‌کوونکو وغواړئ چې انځوریزه کیسه خپلو ټولګیوالو ته ووایي، کله چې دغه فعالیت سرته رسېږي باید ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته:**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه به له تاسو څخه د کیسې په اړه ځینې پوښتنې وکړم.

۲. لومړۍ پوښتنه: په لومړي تصویر کې زده‌کوونکي څه کوي؟ له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته ووایاست چې ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي.

وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. (ځواب: زده‌کوونکي ترانه وایي.)

۳.دویمه پوښتنه: په دریم تصویر کې زده‌کوونکي څه شي ته اشاره کړې ده؟

پوښتنه وکړئ چې څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه د څنګ له ملګرو سره شریک کړي. وروسته بیا ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړئ (ځواب: زده‌کوونکي خپل ښوونکي ته اشاره کړې ده.)

۴.بله یوه ذهني پوښتنه ده چې: کله چې ښوونځي ته راځئ څه احساس کوئ!

پرېږدئ چې یو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. مهمه دا ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

### نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)



۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اوونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.

۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.

۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.

٤. زده کوونکو ته ووایاست چې د کیسې کرکټر هر سهار له خوبه وروسته ځینې کارونه کول او چمتووالی یې نیوه، تاسو هم باید هر سهار ځینې ځانګړي کارونه وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست کله چې تاسو هر سهار له خوبه پاڅیږئ نو لومړی خپله بستره ټولوئ، بیا مخ او لاسونه مینځئ، بیا د سهار چای خورئ، بیا مو د ښوونځي شیان تیاروئ او بیا ښوونځي ته روانیږئ.

۵. زده کوونکو ته ووایاست چې خپل د څنګ ټولګیوال ته دې په دې اړه یوه کیسه ووایي چې دوی هر سهار له خوبه وروسته کوم کارونه ترسره کوي.

٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

**– ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پیدا کړئ؟
- کتاب سره سمې کرښې ترسیم کړئ؟
- تاسو د څه لپاره ښوونځي ته ځئ؟

**– کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې: د تمرین په کتاب کې د کتاب د ښي خوا د لومړي انځور په اړه یو څه رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکې وکولای شي چې:
- ځینې ساده کلمې په سېلابونو ووېشي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**پر سېلابونو د کلمو وېشل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست: زه به یوه کلمه درته ووایم او ټول به یې په ګډه پر سېلابونو (هجاوو) ووېشو او له هر سېلاب به سره لاسونه پړکوو.
۲.ووایاست: راځئ چې دا کلمه په ټیټ غږ ووایو او هجا یې کړو: «تخته».
۳. زده کوونکو ته ووایاست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (تخته) په سېلابونو وېشئ.
۴. دویم او درېیم پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: کړکۍ، دروازه، ښیښه، انار، کېله، مالټه، مڼه، ګلاب، انګور.

**ورته انځور پیدا کړئ (۵ دقیقې)**

۱.ښوونکې دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشوماتو ته د لیدو وړ وي، بیا لومړی کتار پر تختې رسم کړئ.
۲.زده‌کوونکو ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. موږ به وګورو که چیرې وکولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته ووایاست چې ما هغه ورته انځور پیدا کړ.
۳.زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له هغوی سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي انځور ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
۴.د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت له ملګرو سره تر سره کړئ.
۵.په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.



**په ګوتې د کرښو ښارنه (۵ دقیقې)**

زده کوونکو ته ووایاست چې دوی به د یوې کرښې رسمول زده‌کړي.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی د مشق او تمرین په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
۳.هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (پر تختې لومړۍ کرښه رسم کړئ)
٤.له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې همغې کرښې ته د تمرین په کتاب کې اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟)
٥.زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ښارل زده‌کړي.
٦.پر تختې باندې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.
٧.له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ښارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي یې له سم ځای څخه پیل کړي.
٨.پربږدئ چې هغوی یې څو ځلې تکرار کړي.

۹.زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. هغوی ته ووایاست چې له ښې لورې څخه يې کيڼ لورې ته وځاري او له تور غټې ټکې څخه يې پيل کړي. کله چې هغوی دا فعاليت ترسره کوي تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۰.هغوی ته ووایاست چې راتلونکې کرښې وځاري.

۱۱.هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې يې هم تمرين کړي.

### د پنسل د نيولو څرنګوالی (۵) دقيقې

زده‌کوونکو ته د پنسل د نيولو ډول وښياست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نيولو طريقه زده‌کړي او ليک وکړای شي.

### انځوريزه کيسه (۱۵دقيقې)

**د لوستلو څخه مخکې**

۱.زده‌کوونکې دې په خپل کتاب کې هغې انځوريزې کيسې ته وګوري چې تېره ورځ يې لوستلې ده.

۲.هغوی ته يو ځل بيا عنوان ووایاست، او پوښتنه وکړئ که چيرې يې تراوسه په ياد وي چې کيسه د څه شي په اړه وه؟

۳.پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکې خپل ځوابونه شريک کړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې خپل نژدې ټولګيوال ته کيسه ولولي.

۲.له څو دقيقو وروسته، هغوی ته ووایاست چې اوس دې خپل نږدې ټولګيوال ته اجازه ورکړي چې کيسه ولولي.

۳.له دوو يا دريو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې کيسه ټولګيوالو ته ولولي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

**– ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پيداکړو؟
- کولای شئ د کتاب په شان کرښې رسم کړئ؟
- له کتاب سره سمې کرښې ترسيم کړئ؟

**– کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د تمرين په کتاب کې دوه ډوله کرښې رسم کړي.

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (پرې کوونکي، ليقه او د دوو ټکو د موقعيت) په اړه معلومات تر لاسه او بيان کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د (پرې کوونکي، ليقه او د دوو ټکو د موقعيت) په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(دوو ټکو موقعيت) په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**دویمه اونۍ** **موضوع:** کور **فرعي موضوع:** کورنۍ **توري:**

**د اونۍ د زده‌کړې موخې**

د دې اونۍ په پای کې به زده‌کوونکي وکولی شي چې:

۱. کتاب خلاص او بند کړي او پاڼې يې واړوي.
۲. ورته انځورونه به پیدا کړي.
۳. د کتاب له نمونو سره سمې کرښې رسم کړي.
٤. د اورېدلو او لوستلو کیسو د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ووايي او يو شی رسم کړی شي.
۵. زده کوونکي د حسن خط له وسایلو سره بلد شي او د ټکو موقعیتونه وپیژني.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د ستونزو په هوارولو وپوهېږي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړي یادداشتونه**

- زده کوونکو ته له کتاب او قلم څخه د کار اخیستلو لارې وروښيئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې مشابه او متفاوت انځورونه سره بېل کړي.
- له زده کوونکو سره د کرښو په ایستلو کې مرسته وکړئ.
- د اورېدلو کیسه په داسې غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ چې د زده کوونکو پام ځانته راواړوئ او هغوی وکولی شي د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ووايي.
- له ځینو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرین، شاباش، ډېرښه، مننه، کولای شئ... په کارولو سره د زده کوونکو پام ځانته راواړوئ او په ټولګي کې د زده کړې یو فعال او مناسب چاپېریال رامنځته کړئ.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته د ستونزو د حل په برخه کې لازمې لارښوونې او خاص تمرکز وکړي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

**د کورنۍ غړي**

یوه ورځ **سهار** مریم خپلو بچیانو ته غږ کړ*: چای تیار دی. راځئ چې چای وڅښو.

خالدې وویل: زه مې د مکتب جامې **اوتو** کوم. خو اجمل وايي چای به وروسته وڅښم. هغه خپه دی او مکتب ته نه ځي.

مور اجمل ته وکتل. ورته وېې ویل: ولې نه ځې؟



هغه وویل: مورې! کتابچه مې نشته.

مور يې وویل**: زویه! راشه ته چای وڅښه. پیسې به درکړم چې کتابچه واخلې. مکتب ته به ولاړ شې: ښه!

بیا يې خالدې ته وویل: لورې! ته هم چای وڅښه، کالي به زه درته اوتو کړم.

ټولو په ګډه چای وڅښه. اجمل پیسې واخیستې. خور او ورور خوشحاله مکتب ته روان شول.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

- په اورېدلو سره يوشان او مختلفې کلمې وپېژني.
- ورته انځورونه پيدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.

د اورېدو کيسې په اړه له متن سره سم استنباطي يا ذهني پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پيل (۵) دقيقې**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**د ورته کلمو تشخيصول (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست: زه به اوس دوه کلمې درته ووايم. تاسې به ورته غوږ شئ چې دواړه کلمې سره يو شان دي که مختلفې دي.

۲. وواياست: «قلم، قلم»

۳. زده کوونکو ته وواياست: دا دواړه کلمې سره يو شان دي. کله چې تاسې سره يو شان کلمې اورئ لاس مو پورته کړئ او که کلمې مختلفې وې، لاس مو مه پورته کوئ.

٤. دوه نورې کلمې مثلاً «کتاب، کتاب» وواياست.

٥. زده کوونکو ته وواياست: دغه دوه کلمې سره يو شان دي نو زه او تاسو به لاسونه پورته کوو. که کلمې سره مختلفې وې، بيا لاسونه نه پورته کوو.

٦. له زده کوونکو سره يې بيا تمرين کړئ. دغه کلمې «کتاب، کتاب» بيا وواياست او زده کوونکي وپوښتئ چې: دا کلمې سره يو شان دي که مختلفې؟ لاس مو پورته کړئ او وګورئ چې زده کوونکو هم لاسونه پورته کړي وي.

۷. اوس دوه مختلفې کلمې وواياست لکه «کتاب، قلم»

۸. زده کوونکو ته وواياست: دا دوه کلمې سره مختلفې دي نو لاسونه به نه پورته کوئ.



**۹.** بيا دوه نورې کلمې «کتاب، خطاب» وواياست او زده کوونکي وپوښتئ چې دا سره يو شان دي که مختلفې؟ بيا سم ځواب ورته ورکړئ.

۱۰. دا تمرين له دغو پنځو جوړو کلمو سره ترسره کړئ: «۱. سلام - کلام، ۲. کېله - مېله، ۳. کور - کور، ۴. هلال - بلال، ۵. ماما - ماما»

**د ورته انځور پيدا کول (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونيسي چې ټولو زده کوونکو ته د ليدو وړ وي، بيا د انځورونو لومړی کتار پر تختې رسم کړئ يا يې په کتاب کې وښيئ.

۲. زده کوونکو ته وواياست، موږ دلته څلور انځورونه وينو. کولای شو داسې انځور پيدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وڅارم چې داسې انځور پيدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بيا وواياست چې ما ورته انځور

پیدا کړ.

۳. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.

۴. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.

**په ګوتې د کرښو ښارنه(۵)دقیقې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.

۲. هغوی ته ووایاست چې کومه پاڼه باید را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو د کتاب سم مخ را اړولی دی.

۳. زده کوونکو ته وواياست چې د هغوی په کتاب کې کرښې دي.

۴. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم. (لومړۍ کرښه رسم کړئ)

۵. له زده کوونکو وغواړئ چې په کتاب کې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟)

٦. زده کوونکو ته وواياست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ښارل زده کړي.

۷. پر تختې باندې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.

۸. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ښارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده کوونکي یې له سم ځای څخه پیل کړي.

۹. پربږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.

۱۰. زده کوونکو ته وواياست چې راتلونکې کرښې ته په خپلې ګوتې سره اشاره وکړي. وواياست چې

۱. له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وښاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت ترسره کوي، په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۲. هغوی ته وواياست چې راتلونکې کرښه وښاري.

۳. هغوی ته وواياست چې په خپلو کورونو کې یې هم تمرین کړي.

**د پنسل د نیولو څرنګوالی (۵) دقیقې**

زده کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده کړي او لیک وکړای شي.

**د اورېدلو کیسه: (۱۵ دقیقې)**

**د کیسې له اورېدلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې زه به تاسو ته یو متن ولولم.

۲. زده کوونکو ته وواياست چې د دې متن (کیسې) د اورېدلو لپاره چمتو واوسي.

۳. زده کوونکو ته وواياست اوس به د دې متن د یو شمېر مهمو کلمو(لغتونو) په اړه خبرې وکړو.

۴. وواياست چې لومړی لغت د کورنۍ غړي دی هغوی ته وواياست چې له تاسو وروسته لغت درې ځلې ولولي

۵. پوښتنه وکړئ چې د کورنۍ غړي څه معنا لري. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب درکړي.

۶. د کورنۍ غړي کلمې لنډ تعریف ورکړئ چې: د کورنۍ هر تن ته د کورنۍ غړي وايي (له تصویرونو او حرکتونو څخه ګټه واخلئ چې
د کلمې دمعنا په پوهېدلو کې مرسته وکړي).

۷. د لاندېنیو لغتونو لپاره هم ورته کار ترسره کړئ: سهار(ګهیځ، اوتو( هغه شی چې د کالیو ګونځې پرې هواروي).

**د انځور په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه.**

۱. زده کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د کیسې په اړه انځور ته وګوري.

۲. د انځور په اړه له هغوی سره بحث وکړئ (دغه انځور ته وګورئ او وواياست چې څه وينئ؟ پربږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب درکړي. كه اړتيا وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې، نور څه وينئ؟

۳. خلاصه یې کړئ چې تاسو او زده‌کوونکو په انځور کې څه ليدلي دي؟

٤. زده‌کوونکو ته وواياست د کيسې عنوان د کورنۍ غړي دی.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست، اوس خو مو وليدل چې په انځور کې څه دي او د کيسې په عنوان هم پوه شوئ، تاسې څه فکر کوئ چې کيسه به د څه په اړه وي. پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي. هغوی ته ځواب مه ورکوئ. هغوی ته وواياست چې اوس کيسه درته لولم تاسو ورته غوږ شئ چې ورانديڼه مو سمه ده که نه؟

**د کيسې اورېدلو په حال کې:**

۱. کيسه په واضح غږ، مناسب لحن او حرکتونو سره بيان کړئ.په کيسه کې د پېښو په اړه له اشارو او حرکتونو څخه کار واخلئ چې زده‌کوونکي وپوهېږي چې څه پېښېږي. که چيرې اصلي کرکټر ځينې کړنې او حرکتونو تر سره کوي، بيا نو پرېږدئ چې زده‌کوونکي هم هغسې کړنې او حرکتونو تر سره کړي.

۲. کله چې کيسه لولئ په دوو ځايونو کې يو ځل ځنډ کوئ او له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کوئ: څه فکر کوئ چې له دې وروسته به په کيسه کې څه پېښ شي؟ يا ولې داسې وشول؟

* څه فکر کوئ چې مريم به خپلو بچيانو ته څه ويلي وي؟

* څه فکر کوئ چې مور به اجمل ته څه ويلي وي؟

۳. کيسه دوه ځلي ولولئ.

**له اورېدلو وروسته:**

۱. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه يې ورانديڼه سمه وه که نه؟ (هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کيسې په اړه در څخه ځينې پوښتنې کوم.

۳. هغوی ته وواياست: لومړۍ پوښتنه: ده چې: خالده څوک وه؟

زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د کيسې مطابق ځواب ورکړي. (ځواب:خالده د مريمې لور وه.)

۴. دويمه پوښتنه: ده چې: مور يې اجمل ته د څه لپاره پيسې ورکړې؟

ښوونکی دې له زده‌کوونکو وغواړي چې څوک پوهېږي؟ لاسونه دې پورته کړي.

۵. پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل ځواب له نژدې ملګري سره شريک کړي. وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګي سره خپل ځواب شريک کړي. (ځواب مريمې اجمل ته د کتابچې اخيستلو لپاره پيسې ورکړې.)

۶.ذهني پوښتنه: که تاسو خپل هدف ته د رسېدو لپاره هغه څه ونه لرئ چې درته په کار وي، څه به کوئ؟

۷.پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل نظرونه سره شريک کړي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

 **ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

— **ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځور پيدا کړئ.
- د کتاب مطابق کرښه رسمولای شئ؟
- د اورېدلو په کيسه کې خالدې مورته څه وويل؟

— **کورنۍ دنده:**

- زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرين په کتاب کې له کتاب سره سمې دايرې رسم کړي.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

- په اوریدلو سره یوشان او مختلفې کلمې وپېژني.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..



**د ورته کلمو تشخیصول (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست: زه به اوس دوه کلمې درته ووایم. تاسې به ورته غوږ شئ چې دواړه کلمې سره یو شان دي که مختلفې دي.

۲. ووایاست: «قلم، قلم»

۳. زده کوونکو ته ووایاست: دا دواړه کلمې سره یو شان دي. کله چې تاسې سره یو شان کلمې اورئ لاس مو پورته کړئ او که کلمې مختلفې وې، لاس مو مه پورته کوئ.

٤. دوه نورې کلمې مثلاً «کور، کور» ووایاست.

۵. زده کوونکو ته ووایاست: دغه دوه کلمې سره یو شان دي نو زه او تاسو به لاسونه پورته کوو. که کلمې سره مختلفې وي، بیا لاسونه نه پورته کوو.

٦. له زده کوونکو سره یې بیا تمرین کړئ. دغه کلمې «کور، کور» بیا ووایاست او زده کوونکي وپوښتئ چې: دا کلمې سره یو شان دي که مختلفې؟ لاس مو پورته کړئ او وګورئ چې زده کوونکو هم لاسونه پورته کړي وي.

۷. اوس دوه مختلفې کلمې ووایاست لکه «کتاب، قلم»

۸. زده کوونکو ته ووایاست: دا دوه کلمې سره مختلفې دي نو لاسونه به نه پورته کوئ.



**۹.** بیا دوه نورې کلمې «کتاب، خطاب» ووایاست او زده کوونکي وپوښتئ چې دا سره یو شان دي که مختلفې؟ بیا سم ځواب ورته ورکړئ.

۱۰. دا تمرین له دغو پنځو جوړو کلمو سره ترسره کړئ: «۱. سلیم - کلیم، ۲. کېله - کېله، ۳. جلیل - خلیل، ۴. هلال - هلال، ۵. خور - مور»



**د پاڼې اړول (۵ د قیقې)**

**تشریح:** زده کوونکي د پاڼې اړول زده کوي.

۱. د کتاب د متن لومړۍ پاڼه پرانیزئ.

۲. ښوونکی:دا یوه پاڼه ده. (پاڼې ته اشاره وکړئ) دا زموږ د کتاب دویمه پاڼه ده.

۳. ښوونکی: هره پاڼه ځینې معلومات لري، یا هم د کیسې یوه برخه څرګندوي. کله چې زه د دویمې پاڼې لوستل پای ته ورسوم، باید پاڼه واړوم، وګورئ زه څرنګه پاڼه اړوم.

٤. ښوونکی: اوس یې باید په ګډه ترسره کړو. (راتلونکې پاڼې ته اشاره وکړئ) موږ دې ته څه وایو؟ (ښوونکی

او زده‌کوونکي: «پاڼه») ښوونکی: کله چې د دوو پاڼو لوستل پای ته ورسوو باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: «پاڼه اړوو»).

۵. راځئ چې په ګډه پاڼه واړوو. (ښوونکی او زده‌کوونکي پاڼه اړوي)

٦. اوس یې تاسو یوازې ترسره کړئ. کله چې زه ووایم: پاڼه واړوئ، تاسو به پاڼه واړوئ.

٧. ښوونکی: پاڼه واړوئ!(زده‌کوونکي پاڼه اړوي) ښوونکی (د پاڼې اړولو په حالت کې وايي) زه څه کوم؟ (زده‌کوونکي تاسو پاڼه اړوئ).

**ورته انځور پیدا کړئ (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشومانو ته د لیدو وړ وي، بیا د انځورونو لومړی کتار پر تختې رسم کړئ یا یې په کتاب کې ونښيئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بیا ووایاست چې ما ورته انځور پیدا کړ.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.

٤. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.

**په ګوتې د کرښو ښارنه (۵) دقیقې**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.

۲. هغوی ته ونښایاست چې کومه پاڼه باید را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده‌کوونکو سم مخ را اړولی دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.

٤. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)

۵. له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته یې ونښایاست چې کرښه چېرته ده؟)

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ښارل زده‌کړي.

٧. پر تختې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته ونښایاست چې څه وکړي.

٨. له زده‌کوونکو وغواړئ چې خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په ښارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي یې له سمه ځایه پیل کړي.

٩. پربېږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.

۱۰. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وښاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت ترسره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۱. هغوی ته ووایئ چې راتلونکې کرښه وښاري.

۱۲. هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې یې هم تمرین کړي.

**د پنسل د نیولو څرنګوالی (۵) دقیقې**

زده‌کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول ونښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده‌کړي او لیک وکړای شي.

**انځوریزه کیسه(۱)(۱۵دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د یوې انځوریزې کیسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲.د کیسې عنوان «د کورنۍ غړي» زده‌کوونکي فکر

کولو ته هڅوي چې کيسه به د کورنۍ غړي په اړه وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

- د لومړي تصوير جمله: خيبر وايي: مور په کور کې پنځه تنه يو.
- د دويم تصوير جمله: مور او پلار راباندې ګران دي.
- د دريم تصوير جمله: مينه مې خور او ايمل مې ورور دی.
- د څلورم تصوير جمله: پلار مې ډاکټر دی مور مې ښوونکې ده.

**د انځورونو د ليدلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکي دې په کتابونو کې انځورونو ته وګوري.

۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، پوښتنه وکړئ په لومړي انځور کې څه ګورئ؟ ډاډ تر لاسه کړئ زده‌کوونکي يې په کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې وينئ.

۳.د ۲، ۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴.زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توګه ووايم چې په انځور کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې د انځورونو په اړه يې وړاندوينه سمه وه که نه؟

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کيسې په اړه له تاسو ځينې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: په لومړي تصويرکې خيبر څه وايي؟ هغه زده‌کوونکي چې په ځواب پوهېږي خپل لاسونه دې پورته کړي. وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړي. (ځواب: مور په کور کې پنځه تنه يو.)

٤. دويمه پوښتنه: په دريم تصوير کې خيبر څه وايي؟ اجازه ورکړئ چې څوک په ځواب پوهېږي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې ځوابونه سره شريک کړي او وروسته ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړي.(ځواب : مينه مې خور او ايمل مې ورور دی.)

۵. ذهني پوښتنه: ستاسو په فکر د خيبر مور به څنګه ښوونکې شوې وي او پلار به يې څنګه ډاکټر شوی وي؟

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

الف – ارزونه:

- د انځورونو په برخه کې ورته انځور پيدا کړئ.
- کتاب سره سم کرښه ترسيم کړی.
- د دې درس د لوستلو د کيسې په دريم تصوير کې څه وينئ؟

ب – کورنۍ دنده:

زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرين په کتاب کې مايل خطونه رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

- په اوربېدلو سره يوشان او مختلفې کلمې وپېژني.
- ورته انځورونه پيدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوريزې کيسې د تصويرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**د ورته کلمو تشخيصول (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست: زه به اوس دوه کلمې درته ووايم. تاسې به ورته غوږ شئ چې دواړه کلمې سره يو شان دي که مختلفې دي.
۲. وواياست: «قلم، قلم»
۳. زده کوونکو ته وواياست: دا دواړه کلمې سره يو شان دي. کله چې تاسې سره يو شان کلمې اورئ لاس مو پورته کړئ او که کلمې مختلفې وې، لاس مو مه پورته کوئ.
٤. دوه نورې کلمې مثلاً «لالا، لالا» وواياست.
۵. زده کوونکو ته وواياست: دغه دوه کلمې سره يو شان دي نو زه او تاسو به لاسونه پورته کوو. که کلمې سره مختلفې وې، بيا لاسونه نه پورته کوو.
٦. له زده کوونکو سره يې بيا تمرين کړئ. دغه کلمې «لالا، لالا» بيا وواياست او زده کوونکي وپوښتئ چې: دا کلمې سره يو شان دي که مختلفې؟ لاس مو پورته کړئ او وګورئ چې زده کوونکو هم لاسونه پورته کړي وي.
۷. اوس دوه مختلفې کلمې وواياست لکه «خور، مور»
۸. زده کوونکو ته وواياست: دا دوه کلمې سره مختلفې دي نو لاسونه به نه پورته کوئ.



**۹.** بيا دوه نورې کلمې «لالا، لاله» وواياست او زده کوونکي وپوښتئ چې دا سره يو شان دي که مختلفې؟ بيا سم ځواب ورته ورکړئ.
۱۰. دا تمرين له دغو پنځو جوړو کلمو سره ترسره کړئ: «۱. ورور - ترور، ۲. کاکا - ماما، ۳. بابا - بابا، ۴. هلال - بلال، ۵. بابا - ماما»

**د پاڼې اړول (۵ دقيقې)**

تشريح: زده‌کوونکي د پاڼې اړول زده‌کوي
۱. د کتاب د متن لومړۍ پاڼه پرانيزئ.
۲. ښوونکی: دا يوه پاڼه ده. (پاڼې ته اشاره وکړئ) دا زموږ د کتاب دويمه پاڼه ده.
۳. ښوونکی: هره پاڼه ځينې معلومات لري، يا هم د کيسې يوه برخه څرګندوي. کله چې زه د دويمې پاڼې لوستل پای ته ورسوم، بايد پاڼه واړوم، وګورئ زه څرنګه پاڼه اړوم.

۴. ښوونکی: اوس یې باید په ګډه ترسره کړو. (راتلونکې پاڼې ته اشاره وکړئ) موږ دې ته څه وایو؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: «پاڼه») ښوونکی: کله چې د دوو پاڼو لوستل پای ته ورسوو باید څه وکړو؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: «پاڼه اړوو»).

۵. راځئ چې په ګډه پاڼه واړوو. (ښوونکی او زده‌کوونکي پاڼه اړوي)

۶. اوس یې تاسو یوازې ترسره کړئ. کله چې زه ووایم: پاڼه واړوئ، تاسو به پاڼه واړوئ.

۷. ښوونکی: پاڼه واړوئ!(زده‌کوونکي پاڼه اړوي) ښوونکی (د پاڼې اړولو په حالت کې وایي) زه څه کوم؟ (زده‌کوونکي تاسو پاڼه اړوئ).

**ورته انځور پیدا کړئ (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو زده‌کوونکو ته د لیدو وړ وي، بیا د انځورونو لومړی کتار په کتاب کې وښيئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. کولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وڅارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بیا ووایاست چې ما ورته انځور پیدا کړ.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.

۴. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت تر سره کړئ.

**په ګوتې د کرښو څارنه (۵) دقیقې**



۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده‌کړي.

۲. هغوی ته وښایاست چې کومه پاڼه باید را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده‌کوونکو سم مخ را اړولی دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.

۴. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کارم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)

۵. له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟)

۶. زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې څارل زده‌کړي.

۷. پر تختې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.

۸. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپین ټکي) او بیا د کرښې په څارلو سره کیڼ لوري وخوځوي. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي یې له سمه ځایه پیل کړي.

۹. پرېږدئ چې څو ځلې یې تکرار کړي.

۱۰. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. ووایاست چې له ښي لوري څخه یې کیڼ لوري ته وڅاري او له سپین غټ ټکي څخه یې پیل کړي. کله چې هغوی فعالیت ترسره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۱. هغوی ته ووایاست چې راتلونکې کرښه وڅاري.

۱۲. هغوی ته ووایاست چې په خپلو کورونو کې یې هم تمرین کړي.

**د پنسل د نیولو خرنګوالی (۵) دقیقې**

۱. زده‌کوونکو ته د پنسل د نیولو ډول وښیاست او مرسته ور سره وکړئ چې د پنسل د نیولو طریقه زده‌کړي او لیک وکړای شي.

**انځوریزه کیسه(۱)(۱۵ دقیقې)**



**له لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکې دې په خپل کتاب کې هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې ده.

۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان وواياست او پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه؟پربږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

**د انځورونو د لیدلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې په خپل کتاب کې د لوستلو کیسې انځورونو ته وګوري.

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته وګوري،. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره کوي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ګوري په اړه یې ورسره بحث وکړئ. پربږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې وینئ.

۳. هغوی ته وواياست چې د خپل څنګ ټولګیوالو ته د ۲،۳او ۴ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ویني.

۴. زده‌کوونکو ته وواياست چې انځوریزه کیسه خپلو ټولګیوالو ته ووایي، کله چې دغه فعالیت سرته رسېږي باید ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته:**

۱.زده‌کوونکو ته وواياست چې اوس د کیسې په اړه ورڅخه پوښتنې کوم.

۲.هغوی ته وواياست: لومړۍ پوښتنه دا ده چې: په دویم تصویر کې خیبر چاته اشاره کړې ده؟

له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي او ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي.

له هغه وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. ځواب -خیبر خپل مور او پلار ته اشاره کړې ده.

۳.دویمه پوښتنه: په دریم انځور کې خیبر څه شي ته اشاره کړې ده؟

راځئ وګورو که مو ځواب په یاد وي. پوښتنه وکړئ چې څوک په ځواب پوهېږي. پربږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه شریک کړي. وروسته بیا خپل ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړئ. (ځواب خیبر خپل ورور او خورته اشاره کړې ده.)

۴.ذهني پوښتنه: د خپلې کورنۍ په اړه مو څه شی خوښېږي؟

پربږدئ چې یو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته وواياست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. مهمه دا ده چې زده کوونکي فکر وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

– **ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پیداکړی؟
- له کتاب سره سمې کرښې ترسیم کړئ؟
- د لوستلو کیسې په څلورم تصویر کې څه شی وینئ؟

– **کورنۍ دنده:**

- زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د تمرین به کتاب کې له کتاب سره سمې کرښې رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

- ځينې ساده کلمې په سپلابونو و وېشي.
- ورته انځورونه پيدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوريزې کيسې د تصويرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**پر سپلابونو د کلمو وېشل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست: زه به يوه کلمه درته ووايم او ټول به يې په ګډه پر سپلابونو (هجاوو) ووېشو او له هر سپلاب سره به لاسونه پړکوو.
۲.ووایاست: راځئ چې دا کلمه په ټيټ غږ ووايو او هجا يې کړو: «سهار».
۳. زده کوونکو ته ووایاست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (سهار) په سپلابونو وېشئ.
۴. دويم او دريم پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: مريم، مکتب، جامې، اوتو، پيسې، کالي، مورې، لورې، خپه.

**ورته انځور پيدا کړئ (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونيسي چې ټولو ماشوماتو ته د ليدلو وړ وي، بيا د انځورونو لومړی کتار وښيي.
۲. ووایاست، مور دلته څلور انځورونه وينو. کولای شو، داسې انځور پيدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وڅارم چې داسې انځور پيدا کړم چې لومړي تصوير ته ورته وي. وروسته بيا ووایاست چې ما ورته انځور پيدا کړ.
۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بيا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.
۴. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعاليت تر سره کړئ.



**په ګوتې د کرښو ښارنه (۵) دقيقې**

زده کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.

۱. هغوی ته وښاياست چې کومه پاڼه را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ ټولو زده‌کوونکو سم مخ را اړولي دی.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
۳. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)
٤. له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته چې په کتاب کې ده اشاره وکړي. (هغوی ته يې وښاياست چې کرښه چېرته ده)
٥. زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې څارل زده‌کړي.
٦. پر تختې له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښاياست چې څه وکړي.
٧. له زده‌کوونکو وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپين ټکي) او بيا د کرښې په څارلو سره کيڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې

ټولو زده‌کوونکو له سم ځاي څخه پیل کړي دي.

۸. پرېږدئ چې څو ځلې يې تکرار کړي.

۹. زده‌کوونکو ته وواياست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. وواياست چې له ښي لوري څخه يې کيڼ لوري ته وڅاري او له سپين غټ ټکي څخه يې پيل کړي. کله چې هغوی فعاليت تر سره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۰. هغوی ته وواياست چې راتلونکې کرښې وڅاري.

۱۱. هغوی ته وواياست چې په خپلو کورونو کې هم دا فعاليت تمرين کړي.

**انځوريزه کيسه(۲) (۱۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې د يوې انځوريزې کيسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲. د کيسې عنوان دی: «د کورنۍ غړي». دا زده کوونکي فکر کولو ته هڅوي چې کيسه به د کورنۍ غړو په اړه وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

د لومړي تصوير جمله: پلار پوښتنه کوي: آمنې لورې! تا خپله کورنۍ دنده تر سره کړې ده؟

د دويم تصوير جمله: آمنه وايي: هو، پلار جانه! له خيبر او ايمل سره مې يو ځای خلاصه کړه.

د دريم تصوير جمله: مور وايي: آمنه هر وخت له خپلو ورونو خيبر او ايمل سره يو ځای سبق وايي.

د څلورم تصوير جمله: پلار وايي: آفرين! د يو بل په مرسته به سبقونه ښه زده کړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې انځورونو ته وګوري.

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، پوښتنه وکړئ چې په لومړي انځور کې څه وينئ؟ داډ ترلاسه کړئ چې زده‌کوونکي يې په کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې وينئ.

۳. د ۲، ۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴. زده‌کوونکو ته وواياست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توګه ووايم چې په انځور کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه وه که نه؟ (هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کيسې په اړه له تاسو ځينې پوښتنې کوم.

۳. هغوی ته وواياست: لومړۍ پوښتنه دا چې: په لومړي تصوير کې مو څه شی وليدل؟

له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. لومړی دې ځواب له خپل نږدې ملګري سره شريک کړي.

وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې له ټولګيوالو سره ځواب شريک کړي. وروسته سم ځواب ورکړئ (په لومړي تصوير کې پلار او لور ليدل کېږي).

۴. دويمه پوښتنه: په دويم تصوير کې څه شی ليدل کېږي؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شريک کړي. وروسته بيا خپل ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړئ، ځواب په دويم تصوير کې آمنه له خپلو ورونو سره کورنۍ دنده ترسره کوي.

۵. ذهني پوښتنه: کله چې تاسو په خپلو درسونو کې ستونزه ولرئ، ملګري مو څه ډول مرسته درسره کولی شي؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې يو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او وواياست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. مهمه دا ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

– ارزونه:

- د انځورو په برخه کې ورته انځورونه پيداکړئ؟
- له کتاب سه سمې کرښې ترسيم کړئ؟
- د دې لوست د لوستلو د کيسې په دويم تصوير کې څه وينئ؟

ب – کورنۍ دنده:

- زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرين په کتاب کې وړې دايرې رسم کړي.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

زده کوونکي دې د (خطاطۍ کاغذ، قلم تورونکی او دربو ټکو موقعيت) په اړه معلومات تر لاسه او بيان کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د (خطاطۍ کاغذ، قلم تورونکی او د دربو ټکو موقعيت) په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(دربو ټکو موقعيت) په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

- ځينې ساده کلمې په سپلابونوووېشي.
- ورته انځورونه پيدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د لوستلو د انځوريزې کيسې د تصويرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نوښتګره ليکنه وکړي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**په سپلابونو د کلمو وېشل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست: زه به يوه کلمه درته ووايم او ټول به يې په ګډه پر سپلابونو (هجاوو) ووېشو او له هر سپلاب سره به لاسونه پړکوو.

۲.ووایاست: راځئ چې دا کلمه په ټيټ غږ ووايو او هجا يې کړو: «اجمل».

۳. زده کوونکو ته ووایاست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (اجمل) په سپلابونو وېشئ.

۴. دويم او دريم پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: تيار، کتابچه، قلم، کتاب، ټولګی، دهلېز، پاڼه، خالده، روان.

**ورته انځور پيدا کړئ (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونيسي چې ټولو ماشومانو ته د ليدو وړ وي، او د انځورونو لومړی کتار وښيي.

۲. ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وينو. کولای شو، داسې انځور پيدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وڅارم چې داسې انځور پيدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته بيا ووایاست ورته انځور پيدا کړ.

۳. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت له ما سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي کتار ته اشاره وکړي او بيا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته وي.

۴. د انځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعاليت تر سره کړئ.



**په ګوتې د کرښو څارنه (۳ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی به د کرښې رسمول زده کړي.

۲. هغوی ته وښایاست چې کومه پاڼه را واړوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټولو زده کوونکو سم مخ را اړولی دی.

۳. زده کوونکو ته ووایاست چې د هغوی په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.

٤. هغوی ته ووایاست چې زه اوس به لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (لومړۍ کرښه رسم کړئ)

٥. له زده کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته په کتاب کې اشاره وکړي. (هغوی ته يې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟

٦. زده کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې څارل زده کړي.

٧. پر تختې له ښي لوري څخه کيڼ لوري ته د کرښې په اوږدو کې د خپلې ګوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.

٨. له زده کوونکو څخه وغواړئ خپله ګوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپين ټکي) او بيا د کرښې په څارلو سره کيڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده کوونکي يې له سم ځای څخه پيل کړي.

٩. پرېږدئ چې څو ځلې يې تکرار کړي.

۱۰. زده‌کوونکو ته وواياست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. وواياست چې له ښي لوري څخه يې کيڼ لوري ته وڅاري او له سپين غټ ټکي څخه يې پيل کړي. کله چې هغوی فعاليت ترسره کوي په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۱۱. هغوی ته وواياست چې راتلونکې کرښې وڅاري.
۱۲. هغوی ته وواياست چې په خپلو کورونو کې دا فعاليت تمرين کړي.

### انځوريزه کيسه (۱۳ دقيقې)

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکي دې د خپل کتاب د لوستلو هغې انځوريزې کيسې ته وګوري چې پرون يې لوستلې وه.
۲. هغوی ته بيا د تېرې کيسې عنوان وواياست، او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کيسه د څه شي په اړه وه.
۳. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځوابونه شريک کړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې د خپل کتاب انځورونو ته وګوري.
۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته وګوري. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره وکړي. هغه څه چې هغوی يې په انځور کې ويني بحث وکړئ. پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې وينئ.
۳. هغوی ته وواياست چې خپلو ټولګيوالو ته د ۲، ۳ او ۴ انځور په اړه ووايي چې دلته څه ګوري.
۴. له يوشمېر زده‌کوونکو وغواړئ چې انځوريزه کيسه خپلو ټولګيوالو ته ووايي، کله چې دغه فعاليت سرته رسېږي بايد ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته:**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې زه به له تاسو څخه د کيسې په اړه ځينې پوښتنې وکړم.
۲. لومړۍ پوښتنه: په لومړي تصوير کې د آمنې پلار څه وايي؟
له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته ووايئ چې ځواب له خپل ملګري سره شريک کړي.
وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګوالو سره ځواب شريک کړي. (ځواب: وايي: آمنې لورې! تا خپله کورنۍ دنده تر سره کړې ده؟)
۳. دويمه پوښتنه: په دويم تصوير کې څه شی وينئ؟
پوښتنه وکړئ چې څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شريک کړي. وروسته بيا ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړئ (ځواب: په تصوير کې آمنه له خپلو ورونو سره درس وايي)
۴. ذهني پوښتنه: مور او پلار مو په کوم کار ستايي؟
پرېږدئ چې يو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته وواياست چې هغوی څه فکر کوي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. مهمه دا ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

### نوښتي ليکل (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کيسو ته په کتو سره، خپلې کيسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو ورته په دې اړه کيسه کوئ. ورته وواياست زه چې کوچنی وم غوښتل مې چې ښه ښوونکی شم. نو مجبور وم چې د شپې هم درس ووايم او له خپلو خويندو او ورونو سره د يوه څراغ رڼا ته کېنم ځکه چې برق نه و خو زحمت مې و ايست او په آخر کې معلم شوم او خپلې هيلې ته ورسېدم.
٥. زده کوونکو ته وواياست چې خپل د ښنګ ټولګيوال ته دې په دې اړه يوه کيسه ووايي چې څنګه يې خپلې ستونزې هوارې کړي او بريالی شوی دی.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کيسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کيسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتيا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

– **ارزونه:**
- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پيداکړی؟
- د کتاب مطابق کرښه ترسيم کړی؟
- د دويمې انځورريزې کيسې په لومړي تصوير کې څه وينئ؟

– **کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د تمرين په کتاب کې د دې لوست د چپې خوا د دويم تصوير په هکله په همدغه کتاب کې يو څه رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- ځینې ساده کلمې په سېلابونووېشي.
- ورته انځورونه پیدا کړي.
- د کتاب له نمونې سره سمې کرښې رسم کړي.
- د انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**پر سېلابونو د کلمو وېشل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست: زه به یوه کلمه درته ووایم او ټول به یې په ګډه پر سېلابونو (هجاوو) ووېشو او له هر سېلاب به سره لاسونه پړکوو.
۲.ووایاست: راځئ چې دا کلمه په ټیټ غږ ووایو او هجا یې کړو: «څوکۍ».
۳. زده کوونکو ته ووایاست: اوس به تاسو پخپله دا کلمه (څوکۍ) په سېلابونو وېشئ.
۴. دویم او درېم پړاو له دغو کلمو سره تکرار کړئ: کړکۍ، دروازه، ښیښه، پیاله، موټر، مېږی، منه، ګلاب، انګور.

**ورته انځور پیدا کړئ (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشوماتو ته د لیدو وړ وي، د انځورونو لومړی کتار وښيي.
۲. زده‌کوونکو ووایاست، موږ دلته څلور انځورونه وینو. موږ به وګورو که چیرې وکولای شو، داسې انځور پیدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به یې په خپله ګوته تر هغه وښارم چې داسې انځور پیدا کړم چې لومړي انځور ته ورته وي. وروسته ووایئ چې ما هغه ورته انځور پیدا کړ.
۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت له هغوی سره په ګډه تر سره کړئ. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړي انځور ته اشاره وکړي او بیا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې



ورته وي.
٤. د نځورونو په نورو کتارونو کې هم دغه فعالیت له ملګرو سره تر سره کړئ.
٥. په ټولګي کې وګرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

**په ګوتې د کرښو ښارنه (۵ دقیقې)**

١. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دوی به د یوې کرښې رسمول زده‌کړي.
٢. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هغوی د مشق او تمرین په کتاب کې بېلابېلې کرښې دي.
٣. هغوی ته ووایاست چې زه اوس لومړۍ کرښه پر تختې کاږم (پر تختې لومړۍ کرښه رسم کړئ)
٤. له زده‌کوونکو وغواړئ چې همغې کرښې ته د متن په کتاب کې اشاره وکړي. (هغوی ته یې وښایاست چې کرښه چېرته ده؟)
٥. زده‌کوونکو ته ووایاست، هغوی به له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د کرښې ښارل زده‌کړي.
٦. پر تختې باندې له ښي لوري څخه کیڼ لوري ته د

کرښې په اوږدو کې د خپلې گوتې په تېرولو سره، هغوی ته وښایاست چې څه وکړي.

۷. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ خپله گوته د کرښې ښي لوري ته کېږدي (په غټ سپين ټکي) او بيا د کرښې په څارلو سره کيڼ لوري وخوځوي. ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي يې له سم ځای څخه پيل کړي.

۸. پرېږدئ چې هغوی يې څو ځلې تکرار کړي.

۹. زده‌کوونکو ته وواياست چې راتلونکې کرښې ته اشاره وکړي. هغوی ته وواياست چې له ښي لوري څخه يې کيڼ لوري ته وځاري او له تور غټ ټکي څخه يې پيل کړي. کله چې هغوی دا فعاليت ترسره کوي تاسو په ټولگي کې وگرځئ او له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۱۰. هغوی ته وواياست چې راتلونکې کرښې تر سره کړي.

۱۱. هغوی ته وواياست چې په خپلو کورونو کې يې هم تمرين کړي.

### انځوريزه کيسه(۲) (۱۵دقيقې)

**د لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکي دې په خپل کتاب کې هغې انځوريزې کيسې ته وگوري چې تېره ورځ يې لوستلې ده.

۲. هغوی ته يو ځل بيا عنوان وواياست، او پوښتنه وکړئ که چيرې يې تراوسه په ياد وي چې کيسه د څه شي په اړه وه؟

۳. پرېږدئ چې گڼ شمېر زده‌کوونکي خپل ځوابونه شريک کړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې خپل نژدې ټولگيوال ته کيسه ولولي.

۲. له څو دقيقو وروسته، هغوی ته وواياست چې اوس دې خپل نژدې ټولگيوال ته اجازه ورکړي چې کيسه ولولي.

۳. له دوو يا دريو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې کيسه ټولگيوالو ته ولولي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

**الف – ارزونه:**

- د انځورونو په برخه کې ورته انځورونه پيداکړي؟
- د کتاب مطابق کرښې ترسيم کړئ؟
- آيا د کورنۍ غړي مو پر يو بل له غوسې څخه کار اخلي؟

**ب – کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د تمرين په کتاب کې د کتاب مطابق دوه ډوله کرښې رسم کړي.

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (کرکي، مشوانۍ، خطاطی کاغذ، قلم توږونکی او ټکو موقعيت) په اړه معلومات تر لاسه او بيان کړئ.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د (کرکي، مشوانۍ، د خطاطي کاغذ، قلم توږونکی او د ټکو موقعيت) په اړه پوښتنه وکړي.

- زده کوونکي دې د (ټکو موقعيت) په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**درېمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** جومات **توري:** ا، ل، هـ

**د اونۍ د زده‌کړې موخې**

د دې اونۍ په پای کې به زده‌کوونکي وکولی شي چې:

۱. د /ا/، /ل/ او /ه/ تورو شکلونه، نومونه او غږونه به وپېژني او وبه يې ليکي.
۲. د /ا/، /ل/ او /ه/ تورو شکلونه به د کلمو په پيل منځ او پای کې وپېژني.
۳. ورته شکلونه او نښې (علامې) به پيدا کړي.
٤. د /ا/، /ل/ او /ه/ تورو حرکتونه يا سپلابونه به پېژني.
٥. له نوو تورو سره به د سپلاب لرونکو کلمو وېش او ترکيب (يو ځای کېدل) به وکړی شي.
٦. د اورېدلو او لوستلو انځوريزو کيسو د تصويرونو په اړه به پوښتنو ته ځوابونه ووايي.
۸. زده کوونکي د (ا، ل، ه) تورو له بنو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- خپلو کارونو ته سم پام وکړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې يادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- د لومړۍ او دويمې اونۍ لارښوونې په پام کې ونيسئ.
- توري په هوا کې وليکئ، بيا يې له زده کوونکو سره په ګډه په هوا کې وليکئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعاليت څو ځلې تکرار کړي.
- زده کوونکي دې دهغو تورو تمرين وکړي چې مخکې يې لوستلي وي.
- زده کوونکي وهڅوئ چې يو انځور رسم کړي او دهغه په هکله يوه کلمه وليکي.
- ښوونکی په دې اونۍ کې زده کوونکي پوهوي چې د هر کار د ترسره کولو په وخت کې کار ته پوره پام وکړي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## جومات

د جمعې ورځ وه. احمد جومات ته روانېده. اجمل وويل: ما در سره نه بيايې؟

پلار يې وويل: ولې نه، زويه! ورشه اودس وکړه.



اجمل په جومات کې امين وليد. پوښتنه يې ورڅخه وکړه*. ته هره جمعه جومات ته راځې؟ امين وويل: هو! زه او خور مې هر سهار جومات ته راځو. ملا صاحب راته **سيپاره** وايي. ته هم راځه.

اجمل وويل: ښه! اوس پوه شوم. تا خو په جومات کې الف بې زده کړې وه. معلم لا درس هم نه و **پيل** کړی چې تا پر تختې باندې الف او ب وليکلای شول.

اجمل چې کور ته راغی، مور ته يې کيسه وکړه.

مور يې وويل**: نو سر له سبا به ته هم جومات کې **سبق** وايې.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د /ا/ توري شکل، نوم او غږ به وپېژني او و به یې لیکي.
- ورته شکلونه او نښې به پیدا کړي.
- د اورېدلو کیسې او اړه انځور په اړه پوښتنو ته به ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پیل (۵) دقیقې**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه:** (۷ دقیقې)

**د غږونو اورېدل: نوی غږ /ا/**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور (تصویر) کې څه شی وینئ؟ (پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي).

۲. زده‌کووونکو ته ووایاست چې د (انار) کلمې لومړی غږ /ا/ دی.

۳. ښوونکی: اوس به موږ په ځینو کلمو کې لومړي غږ ته غوږ ونیسو.

٤. زده‌کوونکو ته ووایاست چې غږ /ا/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /انار/ ده. دغه کلمه په /ا/ پیلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې بله کلمه /مڼه/ ده. دغه کلمه په /ا/ نه پیلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې بله کلمه /انګور/ ده، دغه کلمه په /ا/ پیلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو ته دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست کلمه /انار/ دی. لومړی غږ یې څه شی دی؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: /ا/).

۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه: انار، ابا، ام او نورو مثالونو سره لکه: احمد، مور، انځر، قلم او... دوام ورکړئ.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست، غږ /ا/ دی. که کلمه په /ا/ پیلېږي، لاسونه پورته کړئ. که نه، لاسونه مه پورته کوئ. لومړی کلمه /انګور/ ده. (زده‌کوونکي: لاسونه پورته کوي.

۱۰. هغوی ته راتلونکې کلمه /ونه/ ووایاست، پرېږدئ زده‌کوونکي ځواب ورکړي. له /ا/ توري سره او له /ا/ پرته تورو سره دوام ورکړئ (ځینې لاسونه پورته، ځینې لاسونه ښکته) (ایمل، مینه، هېواد، امید)



**دورته انځور پیدا کول (۱۳ دقیقې)**

۱. ښوونکی دې کتاب په داسې ډول پورته ونیسي چې ټولو ماشوماتو ته د لیدو وړ وي، یا دې لومړی کتار پر تختې رسم کړي.

۲. ورته دې ووایي چې موږ دلته خلور انځورونه یا نښې

وينو. موږ به وګورو داسې انځور پيدا کړو چې لومړي انځور ته ورته وي. زه به يې په خپله ګوته تر هغه وځارم چې داسې انځور پيدا کړم چې لومړی انځور ته ورته وي. وروسته ووایاست چې ما ورته انځور پيدا کړ.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه دغه فعاليت له تاسو سره په ګډه تر سره کړم. ډاډ ترلاسه کړئ چې هغوی لومړی انځور ته اشاره وکړي او بيا د هغه انځور خوا ته خپلې ګوتې وخوځوي چې ورته (يو شان) وي.

٤. د انځورونو په نورو کتارونو هم دغه فعاليت تر سره کړئ.



**د اورېدلو کيسه: (۱۵ دقيقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې فعاليتونه**

**کلمې (لغتونه): سيپاره، پيل، سبق**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د يوې کيسې د اورېدلو لپاره چمتو واوسي چې تاسو يې هغوی ته لولئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په متن کې به د يو شمېر مهمو کلمو په اړه خبرې وکړو.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړی کلمه سيپاره ده چې له تاسو وروسته به يې درې ځلې تکرار کړي.

۴. پوښتنه وکړئ چې سيپاره څه معنا لري. پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

۵. د سيپاره کلمې لنډ تعريف ورکړئ. له تصويرونو او بدني حرکتونو څخه ګټه واخلئ چې د کلمې د معنا په پوهېدلو کې مرسته وکړي. (ځواب: سيپاره د قرآن شريف يو څپرکی دی.)

۶. هغوی ته يوه جمله ورکړئ چې د سيپاره لغت پکې وي. لکه: موږ په جومات کې سيپاره وايو.

۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې کولای شي داسې يوه جمله ووايي چې نوی لغت پکې وي.

۸. د لاندينيو کلمو لپاره هم ورته کار ترسره کړئ: **پيل** (شروع)، **سبق** (درس، لوست)

**د انځور په کارولو سره د يوې کيسې وړاندوينه**

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د کيسې په اړه انځور ته وګوري.

۲. د انځور په اړه له هغوی سره بحث وکړئ (انځور ته وګورئ او ووايئ چې په تصوير کې څه وينئ؟ پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب درکړي. که چيرې اړتيا وي، له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې نور څه ګوري؟

۳. خلاصه يې کړئ چې تاسو او زده‌کوونکو په انځور کې څه ليدلي دي.

۴. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کيسې د عنوان په اړه نظر ورکړي. زده‌کوونکو ته ووایاست د کيسې عنوان جومات دی.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس خو مو وليدل چې په انځور کې څه دي او د کيسې په عنوان هم پوه شوئ، څه فکر کوئ چې کيسه به د څه په اړه وي؟ پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي. هغوی ته ځواب مه ورکوئ. ورته ووايئ چې اوس کيسه درته لولم تاسو غوږ ونيسئ چې وړاندوينه مو سمه وه که نه؟

**د اورېدلو په حال کې**

۱. کيسه په واضح غږ او مناسب لحن بيان کړئ. په کيسه کې د پېښو په اړه له اشارو او بدني حرکتونو څخه کار واخلئ چې زده‌کوونکي مو وځاري چې څه پېښېږي. که چيرې اصلي کرکټر ځينې کړنې او حرکات تر سره کوي، بيا نو پرېږدئ چې زده‌کوونکي هم همغسې کړنې او حرکات تر سره کړي.

۲. کله چې کيسه لولئ دوه ځلې په کې ځنډ او له زده‌کوونکو پوښتنه کوئ : څه فکر کوئ چې له دې وروسته به په کيسه کې څه پېښ شي؟ يا ولې ځينې شيان پېښېږي.

* څه پوښتنه به يې کړې وي؟

** د اجمل مور به څه ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه ده که نه؟ (هو/ نه)

۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه به د کیسې په اړه ځینې پوښتنې وکړم.

۳.لومړۍ پوښتنه: اجمل پلار ته څه وویل؟

زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د کیسې مطابق ځواب ورکړي. (ځواب: اجمل پلار ته وویل: ما در سره نه بیایې؟

۴.دویمه پوښتنه: امین اجمل ته څه وویل؟

وبه ګورو چې له لوستل شوي متن څخه مو ځواب په یاد دی که نه؟ پرېږدئ چې یو شمېر زده‌کوونکي خپل ځوابونه شریک کړي. بیا سم ځواب ورکړئ: (ځواب: امین وویل: هو. زه او خور مې هر سهار جومات ته راځو. ملا صاحب راته سیپاره وایي.)

۵. ذهني پوښتنه: دا ولې مهمه ده چې په جومات کې هر شي ته پام وکړو؟

پرېږدئ چې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ تل پوښتنه وکړئ چې هغوی ولې داسې فکر کوي؟

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

**– ارزونه:**

- د کتاب مطابق ورته شکل یا نښه (علامه) پیدا کولای شئ؟
- د اورېدلو کیسې په اړه مو څه په یاد دي ویلای یې شئ؟

**– کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په ټولګي کې اورېدلې کیسه له خپلې کورنۍ سره شریکه کړي.

توري دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

- د کلمو په پيل، منځ او پای کې به د /ا/ توري شکلونه وپېژني.
- د /ا/ توري حرکتونه به وپېژني.
- د لوستلو کيسو د انځورونو په اړه به پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..



**غږ پېژندنه:** (۷ دقيقې)

۱. د تمرين شوي غږ تکرار: /ا/

۲. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه شی وینئ؟ (پربږدئ چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکړي).

۳. زده کووونکو ته ووایاست چې د کلمې لومړی غږ /ا/ دی.

٤. ښوونکی: اوس به موږ په ځينو کلمو کې لومړي غږ ته غوږ ونيسو.

۵. زده کوونکو ته ووایاست چې غږ /ا/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /انار/ دی. دغه کلمه په /ا/ پیلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.

٦. زده کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /کتاب/ ده دغه کلمه په /ا/ نه پیلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.

۷. زده کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /انګور/ ده، دغه کلمه په /ا/ پیلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.

۸. زده کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو دغه کار په ګډه ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /انګور/ ده. لومړی غږ څه شی دی؟ (ښوونکی او زده کوونکي: /ا/).

۹. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس په دې طريقه تاسو په ګډه زياتې کلمې ترسره کړئ. له نمونوي مثالونو



سره لکه: انار، انګور، ناک او له نورو مثالونو سره، لکه: انځر، ختکی، ام او ... دوام ورکړئ.

۱۰. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /انګور/ ده. که چیرې کلمه په /ا/ پيلېږي، لاسونه پورته کړئ، که نه لاسونه مه پورته کوئ. لومړی کلمه /ام/ ده. زده کوونکي: (لاسونه پورته)

۱۱. هغوی ته راتلونکي کلمه /ګل/ ووایاست، پرېږدئ زده کوونکي ځواب ورکړي. له /ا/ توري سره او له /ا/ پرته تورو سره دوام ورکړئ (ځينې لاسونه پورته، ځينې لاسونه ښکته)

۱۲. زده کوونکو ته ووایاست چې دويم انځور ته وګوري، انځور د څه شي په اړه دی؟ (پرېږدئ ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکړي).

۱۳. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمې منځنی غږ /ا/ دی.

۱٤. ښوونکی: موږ به اوس په ځينو کلمو کې منځني غږ

ته غوږ ونیسو.

۱٤. زده‌کوونکو ته وواياست چې اوس به په دې طريقه تاسو دوام ورکړئ. زياتې کلمې تر سره کړئ. له نمونوي مثالونو سره لکه: بادام، انار، کيله او نورو مثالونو سره لکه: بابا، کاکا، ورور.... دوام ورکړئ.

۱٥.زده‌کوونکو ته وواياست چې دريم انځور ته وګوري. انځور د څه شي په اړه دی؟ (پرېږدئ څو زده‌کوونکي ځواب ورکړي)

۱٦.زده‌کوونکو ته وواياست، د کلمې وروستی غږ /ا/ دی.

۱۷.زده‌کوونکو ته وواياست، موږ به په ځينو کلمو کې وروستي غږ ته غوږ ونيسو.

۱۸. زده‌کوونکو ته وواياست چې اوس به په دې طريقه تاسو زياتې کلمې ترسره کړئ. له نمونوي مثالونو سره لکه: بادام، کاکا، لالا او له نورو مثالونو سره لکه: واده، بابا، سبا، احمد، حامد، طاهر... دوام ورکړئ.

**د توري د نورو شکلونه او غږونو تدريس ( ۱۳ دقيقې)**



۱. پرتختې باندې د تمرکز وړ توري وليکئ.
۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې په خپلو کتابونو کې کليدي انځورونو ته وګوري.
۳. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د شيانو نومونه او د کلمې لومړی غږ په ګوته کړي.
٤. له زده‌کوونکو وغواړئ، په درسي کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې په کليدي کلمې کې د توري د غږ استازيتوب کوي او د هغو د (فتحې، کسرې او ضمې) اړه حرکتونه ښيي. له زده‌کوونکو سره يو ځای د هغو غږونه ولولئ.
٥. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې وليکئ.
٦. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري دې شکل ته اشاره وکړي او د سمبول /ا/ غږ ووايي.
۷. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي توري په خپله ګوته وښاري.
۸. د توري خط له خارلو وروسته، د توري غږ وواياست. /ا/
۹. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری د کلمې په وروستۍ برخه کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې وليکئ.
۱۰. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په درسي کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او د سمبول /ا/ غږ ووايي.
۱۱. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي توري دې په خپله ګوته وښاري.
۱۲. د توري خط له خارلو وروسته د توري غږ وواياست.
۱۳. زده‌کوونکو ته وواياست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته يو په يو اشاره وکړي او کله چې اشاره کوي غږ دې ووايي.

**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

۱. د توري حرکتونه (سېلابونه) اَ، اِ او اُ پر تختې وليکئ.
۲. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری /ا/ دی چې د /اَ/ په حرکت سره توپير پيدا کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.
۳. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست دغه توری /ا/ دی چې د /اِ/ په حرکت سره توپير پيدا کوي.
٤. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری /ا/ دی چې د /اُ/ په حرکت سره توپير پيدا کوي.
٥. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه يې غږ وواياست.
٦. زده‌کوونکو ته وواياست، په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي او په جوړه ييزه توګه يې ووايي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال بايد په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.
۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۸. زده‌کوونکو ته ووايئ، د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

**انځوریزه کیسه(۱)(۱۵دقیقې)**



**لوستلو مخکې**

د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې د یوې انځوریزې کیسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲.زده‌کوونکو ته عنوان ووایاست. د کیسې عنوان جومات دی. دا کار زده‌کوونکي فکر ته اړ کوي چې د /جومات/ په اړه به څه ویل شوي وي؟

د لومړي تصویر جمله: دا زموږ جومات دی.

د دویم تصویر جمله: ابا په جومات کې لمونځ کوي.

د دریم تصویر جمله: جومات زموږ د کلا ترخنګ دی.

د څلورم تصویر جمله: زموږ د جومات لار پاکه ده.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوریزې کیسې تصویرونه وګوري.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته ووایاست چې په لومړي انځور کې څه ګوري. ډاډ تر لاسه کړئ زده‌کوونکي یې په خپل کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووایي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګوري.

۳. د ۲، ۳او ۴ انځور لپاره دویم پړاو تکرار کړئ.

٤. زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ ټولو انځورونو ته یو ځل بیا وګورو او په لنډه توګه به درته ووایم چې په هر انځور کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه ده که نه؟ ( هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه اوس د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: ابا چېرته لمونځ کوي؟

له زده‌کوونکو وغواړئ چې که په ځواب پوهېږي، خپل لاسونه پورته او ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي. وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. (ځواب: ابا په جومات کې لمونځ کوي.)

۴.دویمه پوښتنه: په دریم تصویر کې جومات چېرته دی؟

زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شریک او وروسته یې له ټولګیوالو سره شریک کړئ. (ځواب: جومات زموږ د کلا تر څنګ دی.)

۵. ذهني پوښتنه: څنګه کولای شئ چې په جومات کې خپل پام راټول کړئ؟

زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ یو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

الف – ارزونه:

- د (الف) توري غږ ویلای شئ؟
- د (الف) توری لیکلای شئ؟
- د اوربدلو د کیسې په اړه مو څه په یاد دي؟

ب – کورنۍ دنده:

د /ا/ توری د تمرین په کتاب کې ولیکئ؟

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د /ل/ توري شکل، نوم او غږونه به وپېژني او و به يې ليکي.
- د /ا/ او /ل/ له تورو څخه به د جوړو شوو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
- د دويمې ورځې د لوستلو کيسې د انځورونو په اړه به پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه**(۷دقيقې)



**د غږونو اورېدل: نوی غږ: /ل/**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه شی وينئ؟ (پرېږدئ څو زده‌کوونکي ځواب ورکړي).

۲. زده‌کووونکو ته ووایاست چې د کلمې لومړی غږ /ل/ دی.

۳. ښوونکی: اوس به په ځينو کلمو کې لومړي غږ ته غوږ ونيسو.

٤. زده‌کوونکو ته ووایاست چې غږ /ل/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /لور/ ده. دغه کلمه په /ل/ پيلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.

٥. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /کور/ دی. دغه کلمه په /ل/ نه پيلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /لالا/ دی، دغه کلمه په /ل/ پيلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو دغه فعاليت



ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /لالا/ دی. لومړی غږ يې څه شی دی؟ (ښوونکي او زده‌کوونکي: /ل/).

۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طريقه تاسو زياتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه: لور، لالا، کور او نورو مثالونو سره، لکه: ليمو ، لار، مور او... دوام ورکړئ.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت ترسره کړئ. ووایاست، غږ /ل/ دی. که چيرې کلمه په /ل/ پيلېږي، لاسونه پورته کړئ. که نه لاسونه مه پورته کوئ. لومړی کلمه /لور/ ده. زده‌کوونکي: (لاسونه پورته)

۱۰. هغوی ته راتلونکې کلمه /لالا/ ووایاست، پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي. د لوست په مثال او نورو مثالونوسره، دوام ورکړئ (ځينې لاسونه پورته، ځينې لاسونه ښکته)

### د توري لوستل (۱۳ دقیقې)

۱. د تمرکز وړ توری پرتخته ولیکئ.
۲. دغه توري ته اشاره وکړئ، د دغه توري نوم لام معرفي کړئ او د توري غږ /ل/ څو ځلې ووایاست.
۳. له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ او په ګډه یې ځواب ورکړئ.
۴. کله چې تاسو پر تختې توري ته اشاره کوئ، له زده‌کوونکو وغواړئ د توري غږ له تاسو سره تکرار کړي.
۵. له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ او پرېږدئ چې په خپله ځواب ورکړي.
۶. زده‌کوونکو ته ووایاست چې تاسو به لومړی دغه توری په هوا کې ولیکئ. تختې ته مخ واړوئ او دغه توری په هوا کې ولیکئ. او ویې لولئ وروسته یې بیا له زده‌کوونکو سره ترسره کړئ. بیا پرېږدئ چې زده‌کوونکي یې په خپله تر سره کړي.
۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې په دغه توري ګوته کېږدي.
۸. له زده‌کوونکو وغواړئ چې توری د لوستلو پر مهال په ګوته وښاري.
۹. د توري له ښارنې وروسته، د توري غږ ووایاست.
۱۰. زده‌کوونکو ته ووایاست چې خپل پنسل واخلي او دغه توری د خپل تمرین په کتاب کې ۵ ځلې ولیکي.

### هجا یې کړئ

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین - وېش او ترکیب (یوځای کول)**

۱. پر تختې لومړی د درسي کتاب مطابق ل ا ل = لال ولیکئ.
۲. مخکې له دې چې د کلمو په وېش او ترکیب پیل وکړئ زده‌کوونکو ته ووایئ چې څرنګه له (ل)، (ا) او (ل) تورو څخه د /لال/ یو سېلاب جوړ شوی دی.
۳. کله چې تاسو خپله ګوته د هرتوري یا سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.
۴. د درسي کتاب مطابق دویمه دوه سېلابه کلمه لا لا = لالا پر تختې ولیکئ. او درې ځلې یې له زده‌کوونکو سره د لاسونو په حرکت او یو ځای کولو وېش او ترکیب کړئ.
۵. له زده‌کوونکي وغواړئ چې په جوړیزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو تورو او سېلابونو وېش او ترکیب وکړي.
۶. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۷. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د دې کلمو لوستل په کور کې تمرین.

### انځوریزه کیسه(۱)(۱۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده‌کوونکې دې د خپل کتاب هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې وه.
۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست، ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په خپلو کتابونو کې د لوستلو انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه فکر وکړي.
۲. هغوی ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري، ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره کوي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ګوري په اړه یې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي چې په انځور کې څه ګوري. د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګورئ.
۳. هغوی ته ووایاست چې د خپل څنګ ټولګیوالو ته د ۲،۳ او ۴ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ګوري.
۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې انځوریزه کیسه د خپل څنګ ملګري ته ووایي، ډاډ ترلاسه کړئ چې د فعالیت د سرته رسولو پر مهال ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره وکړي.
۵. له ځینو زده‌کوونکو وغواړئ چې د انځوریزې کیسې

په اړه نظرونه ورکړي. ډاډ ترلاسه کړئ چې د فعالیت د سرته رسولو پر مهال ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه به د کیسې په اړه ځینې پوښتنې وکړم.

۲. لومړۍ پوښتنه: په لومړي تصویر کې هلک څه شي ته اشاره کړې وه؟

له زده‌کوونکو وغواړئ چې که په ځواب پوهېږي، خپل لاسونه پورته کړي او ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي. وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. (ځواب: هلک جومات ته اشاره کړې وه.

۳.دویمه پوښتنه: په دریم تصویر کې جومات چېرته دی؟

زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د کیسې مطابق ځواب ورکړي. پرېږدئ زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه له ټولګیوالو سره شریک کړي. ځواب: په کلي کې جومات د کلا ترشا دی)

۴.ذهني پوښتنه: ځنګه کولای شئ چې په جومات کې د مشرانو لارښوونو ته پوره پام وکړئ؟

پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې څه فکر کوئ؟ په دې ړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

– ارزونه:

- د (ل) توري غږ ویلای شئ؟
- د (ل) توری لیکلای شئ؟
- که (ل) او (ا) سره یو ځای کړو څرنګه لوستل کېږي؟

**ب – کورنۍ دنده:**

د کتاب د وروستني جدول توري مو د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د /ل/ توري شکل به د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني.
- د /ل/ توري حرکتونه وپېژني.
- د /ل/ او /ا/ تورو څخه به د جوړو شوو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو د دویمې انځوریزې کیسې به په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه (۷دقیقې)**

**د غږونو اورېدل: نوی غږ: /ل/**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه وینئ؟ (پرېږدئ څو تنه زده‌کوونکي ځواب ورکړي).

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (لور) کلمې لومړی غږ /ل/ دی

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (لور) کلمې لومړی غږ /ل/ دی.

٤. ښوونکی: اوس به موږ په ځینو کلمو کې لومړي غږ ته غوږ ونیسو.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې غږ /ل/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /لور/ ده. دغه کلمه په /ل/ پیلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /اوبه/ ده. دغه کلمه په /ل/ نه پیلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /لار/ ده، دغه کلمه په /ل/ پیلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.

۸. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست کلمه /لور/ ده. غږ څه شی دی؟ (ښوونکی او زده‌کوونکي: /ل/).

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه: لور، لار، لیمو او نورو مثالونو سره، لکه: لاس، لامبو،



کور، اوبه او ... دوام ورکړئ.

۱۰. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه (لور) ده که کلمه په /ل/ پیلېږي، لاسونه پورته او که نه لاسونه مه پورته کوئ. لومړی کلمه /لیمو/ ده. (زده‌کوونکي: لاسونه پورته)

۱۱. هغوی ته نورې کلمې /لار، کور/ ووایاست، پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي. له /ل/ توري سره او له /ل/ پرته تورو سره دوام ورکړئ. (ځینې لاسونه پورته، ځینې لاسونه ښکته)

۱۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دویم انځور ته وګوري، په انځور کې څه وینئ؟ (پرېږدئ څو تنه زده‌کوونکي ځواب ورکړي).

۱۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (کېلې) کلمې منځنی غږ /ـلـ/ دی.

۱٤. ښوونکی: اوس به په ځینو کلمو کې منځني غږ ته غوږ ونیسو.

۱۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له نمونوي مثالونو سره لکه: کېله، جلیل او له نورو مثالونو سره لکه:

خلیل او پلوشه دوام ورکړئ.

۱٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دریم انځور ته وګوري. په انځور کې څه شی وینئ؟ (پرېږدئ څو تنه زده‌کوونکي ځواب ورکړي)

۱۷. زده‌کوونکو ته ووایاست د( ګل) کلمې وروستی غږ /ل/ دی.

۱۸. ووایاست، موږ به په ځینو کلمو کې وروستي غږ ته غوږ ونیسو.

۱۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس په دې طریقه تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له نمونوي مثالونه. لکه: ګل، بلبل، کابل او نورو مثالونو سره، لکه: زابل، ساتل، سطل او... دوام ورکړئ.

### د توري د نورو شکلونو تدریس (۱۳ دقیقې)

۱. پرتختې د تمرکز وړ توری ولیکئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست په خپلو کتابونو کې کلیدي انځورونو ته وګوري.

۳. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د شیانو نومونه او د کلمې لومړی غږ په ګوته کړئ.

٤. له زده‌کوونکو وغواړئ، په درسي کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې کلیدي انځور ته نږدې تورو د غږ استازیتوب کوي.له زده‌کوونکو سره (په ګډه) د کلمې غږ ووایاست.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. د توري شکل پر تختې ولیکئ.

٦. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ یې /ل/ ووایي.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، کله چې غږ ادا کوئ توری په خپله ګوته رسم کړي.

۸. د توري د خط له خاڵو وروسته، د توري غږ ووایاست.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري د کلمې په وروستۍ برخه کې بل شکل لري. د توري شکل پر تختې ولیکئ.

۱۰. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپلو کتابونو کې د توري شکل او حرکت ته اشاره وکړي او غږ یې /ل/ ولولي.

۱۱. زده‌کوونکو ته ووایاست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي توری په خپله ګوته رسم کړي.

۱۲. په ټولګي کې وګرځئ له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې ولري.

۱۳. د توري د خط له خاڵو وروسته، د توري غږ ووایاست.

۱٤. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته یو په یو اشاره وکړي او غږ یې هم ولولي.

### هجا یې کړئ

**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

۱. د توري حرکتونه (سېلابونه) لَـ، لـِ او لـُ پر تختې ولیکئ.

۲. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /لـ/ دی چې د /لَـ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست دغه توري /لـ/ دی چې /لـِ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.

٤. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /لـ/ دی چې د /لـُ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.

۵. سېلابونو ته یو په یو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه یې غږ ووایاست.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړي او په جوړه ییزه توګه یې ووایي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.

۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۸. زده‌کوونکو ته ووایئ، د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین- وېش او ترکیب**

۱. پر تختې د درسي کتاب مطابق لومړی سېلاب (لـ ا = لا) ولیکئ او درې ځلې یې له زده‌کوونکو سره د لاسونو په خلاصولو او یو ځای کولو وېش او ترکیب کړئ.

۲. مخکې له دې چې د کلمو په لوستلو پیل وکړئ، زده‌کوونکو ته وښیئ چې څرنګه یې هیجا ګانې ورو، ورو ادا کړي.

۳. کله چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.

٤. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمې په ارامه

توګه، تکرار کړئ.

۵. دغه پړاو په دویمه کلمه هم تر سره کړئ لا_لا = لالا

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه تمرین ستاسو په کتاب کې هم شته. کلمو ته په خپله ګوته اشاره وکړئ.

۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په جوړه توګه کار وکړي، او په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.

۸. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د دې کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

### انځوریزه کیسه(۲) (۱۵ دقیقې)

**له لوستلو ؤخه مخکې**

د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د یوې انځوریزې کیسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲. زده‌کوونکو ته عنوان ووایاست. د کیسې عنوان جومات دی. دا کار زده‌کوونکي فکر کولو ته اړ کوي چې کېدای شي کیسه د جومات په اړه وي له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

د لومړي تصویر جمله: زه له پلار سره جومات ته ځم.

د دویم تصویر جمله: زین الله او لیلا له پلار سره جومات روان دي.

د دریم تصویر جمله: په جومات کې لمونځ کوو.

د څلورم تصویر جمله: زین الله او لیلا له جومات څخه راغلل.

**د لوستلو پرمهال**

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوریزې کیسې تصویرونو ته وګوري.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته ووایاست چې په لومړي انځور کې څه ویني؟ ډاډ تر لاسه کړئ زده‌کوونکي یې هم په کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووايي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکو ځواب ورکړ، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګوري.

۳. د ۲، ۳او ۴ انځور لپاره دویم پړاو تکرار کړئ.

۴. زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته یو ځل بیا وګورو چې څه په کې پېښېږي؟

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو وپوښتئ چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه وه که نه؟ (هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې له تاسو څخه د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: څوک جومات ته تلل؟

له زده‌کوونکو وغواړئ چې که په ځواب پوهېږي، خپل لاسونه پورته کړي او ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي. وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې له ټولګیوالو سره ځواب شریک کړي. (ځواب: زین الله او لیلا له پلار سره جومات ته تلل.)

۴. دویمه پوښتنه: موږ په جومات کې څه کوو؟

زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شریک کړي. وروسته بیا خپل ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړي؟ (ځواب: موږ په جومات کې لمونځ کوو.)

۵. ذهني پوښتنه: که په جومات کې وئ او زړه مو غوښتل چې شور ما شور وکړئ، څنګه به ځان کنټرولوئ؟

زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي. پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

الف – ارزونه:

- د (کېلې) په کلمه کې د (ل) توری په نښه کولای شئ؟
- په جدول کې د (ل) توري حرکتونه ویلی شئ؟
- د نن ورځې د لوستلو کیسې عنوان څه شی و.

ب – کورنۍ دنده:

- زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د درسي کتاب د جدول مطابق د (ل) د توري بڼه د کلمې پر پیل، منځ او پای کې د تمرین په کتاب کې څلور ځلې ولیکي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ا) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دی له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(ا) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د (ه) توري شکل، نوم او غږ به وپېژني او و به يې ليکي.
- د /ه/ توري حرکتونه به وپېژني.
- له (ا، ل او ه) تورو څخه د جوړو شوو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
- د لوستلو کيسو د انځورونو په اړه خپله کيسې ووايي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه(۷دقيقې)**

**د غږونو اورېدل: نوی غږ: /ه/**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ (پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي).
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د هګۍ کلمې لومړی غږ /ه/ دی.
۳. ښوونکی: اوس به موږ په ځينو کلمو کې لومړي غږ ته غوږ ونيسو.
۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې غږ /ه/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /هګۍ/ ده. دغه کلمه په /ه/ پيلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.
۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې بله کلمه /قلم/ دی. دغه کلمه په /ه/ نه پيلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.
۶. زده‌کوونکو ته ووایاست چې بله کلمه /هارون/ دی، دغه کلمه په /هـ/ پيلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.
۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو دغه فعاليت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /هګۍ/ ده. لومړی غږ څه شی دی؟ (ښوونکی او زده‌کوونکی: /ه/).
۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طريقه تاسو زياتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه:



هيلۍ، هاشم، هيله او نورو مثالونو سره، لکه: هېواد، هارون او ... دوام ورکړئ.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعاليت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /هيلۍ/ ده. که کلمه په /ه/ پيلېږي، لاسونه پورته کړئ. که نه، لاسونه مه پورته کوئ. لومړی کلمه /هيله/ ده. (زده‌کوونکي: لاسونه پورته)
۱۰. هغوی ته کلمې /هېواد، ګل/ ووایاست، پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي. له /ه/ توري سره او له /ه/ پرته دوام ورکړئ (ځينې لاسونه پورته، ځينې لاسونه ښکته) (هېواد، وطن، کور او ...)

**د توري لوستل او ليکل (۱۳دقيقې)**

۱. د تمرکز وړ توري پر تختې وليکئ.
۲. دغه توري ته اشاره وکړئ، د دغه توري نوم هې معرفي کړئ او د توري غږ /ه/ څو ځلې ووایاست.
۳. له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ

او په ګډه ځواب ورکړئ.

٤. کله چې تاسو پر تختې توري ته اشاره کوئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې د توري غږ له تاسو سره تکرار کړي.

٥. له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ او پرېږدئ چې په خپله ځواب ورکړي.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به دغه توری په هوا کې ولیکم. مخ مو تختې ته واړوئ او دغه توری په هوا کې ولیکئ. او ویې لولئ وروسته یې بیا له زده‌کوونکو سره ترسره کړئ. بیا پرېږدئ چې زده‌کوونکي یې په خپله تر سره کړي.

٧. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې په دغه توري ګوته کېږدي.

٨. له زده‌کوونکو وغواړئ چې توری وښاري.

٩. د توري له ښارنې وروسته، د توري غږ ووایاست.

١٠. زده‌کوونکو ته ووایاست چې خپل پنسل واخلي او دغه توري د خپل تمرین په کتابچه کې ۵ ځلې ولیکي.

### هجا یې کړئ



**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

١. د توري حرکتونه (هَ، هِ او هُ )پر تختې ولیکئ.

٢. د لومړي حرکت ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /ه/ دی چې د /هَ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

٣. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست دغه توري /ه/ دی چې /هِ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.

٤. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /ه/ دی چې د /هُ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.

٥. سېلابونو ته یو په یو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه یې غږ ووایاست.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړي او په جوړه ییزه توګه یې ووایي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.

په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

زده‌کوونکو ته ووایئ، د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین ـ وېش**

پر تختې باندې لومړی کلمه الله جَلّ جَلَالُهُ = الله جَلّ جَلَالُهُ ولیکئ، لکه څنګه چې په کتاب کې لیکل شوې ده.

١. مخکې له دې چې د کلمو په لوستلو پیل وکړئ، زده‌کوونکو ته وښیئ چې څرنګه یې هیجاګانې ورو، ورو ادا کړي.

کله چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.

٢. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمې په ارامه توګه، تکرار کړئ.

٣. دغه پړاو د دویمې کلمې لا له = لاله لپاره هم ترسره کړئ

٤. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په جوړیزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.

٥. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د دې کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.



### انځوریزه کیسه (۱۵ دقیقې)



**له لوستلو څخه مخکې**

١. زده‌کوونکي دې د خپل کتاب هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې وه.

٢. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه.

**د لوستلو پرمهال**

١. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په خپلو کتابونو کې د

لوستلو انځوریزې کیسې د تصویرونو په اړه فکر وکړي.

۲. هغوی ته وواياست چې لومړي انځور ته وګوري. ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره کوي. هغه څه چې هغوی يې په انځور کې ګوري په اړه يې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي چې په انځور کې څه ګوري. د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې ګوري.

۳. د ۲، ۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴. زده‌کوونکو ته وواياست چې انځوريزه کيسه د خپل ښنګ ملګري ته ووايي، ډاډ ترلاسه کړئ چې د فعاليت د سرته رسولو پرمهال ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې زه به د کيسې په اړه ځينې پوښتنې وکړم.

۲. لومړۍ پوښتنه: په دويم تصوير کې څوک جومات ته روان وو؟ له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي او ځواب له خپل ملګري سره شريک کړي.

له هغه وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګيوالو سره ځواب شريک کړي. (ځواب: زين الله او ليلا له پلار سره جومات ته روان وو.)

۳. دويمه پوښتنه: څوک له جومات څخه کور ته راغلل؟ زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې د کيسې مطابق ځواب ورکړي. پرېږدئ زده‌کوونکي خپل ځواب لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل له ټولګيوالو سره شريک کړي. (ځواب: ليلا او زين الله له جومات څخه کور ته راغلل.)

۴. ذهني پوښتنه: د خپل کلي د جومات تصوير ښنګه رسمولی شئ.

پرېږدئ چې يو شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ورته وواياست چې څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

۵. زده‌کوونکي وهڅوئ چې له ليکل شوو تورو څخه توري وليکي.

**نوښتي ليکل (۱۰ دقيقې)**



۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کيسو ته په کتو سره، خپلې کيسې جوړوئ.

۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.

۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې څه يې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.

٤. زده کوونکو ته وواياست چې کله زه کوچنۍ وم او کله کله به مې د مشرانو لارښوونو ته پام نه کاوه نو له ستونزو سره به مخ کېدم. يا ورته وواياست چې ما خپلې وړې لورې ته ويلي وو چې جومات ته چې ځې ورو ورو دې لاره شي خو هغې منډې وهلې نو ولوېده او پښه يې خوږ شوه. بيا يې ژړل او ويل يې چې که مې ستا خبره منلې وای نه به لوېدم.

٥. زده کوونکو ته وواياست چې خپل د ښنګ ټولګيوال ته دې په دې اړه يوه کيسه ووايي چې کله يې د مشرانو خبرو ته پام نه دی کړی، څه ستونزه ورته پيدا شوې ده؟

٦. کله چې زده کوونکي خپلې کيسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کيسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتيا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

**ارزونه:**

- د (ه) توري غږ ويلای شئ؟
- د (ه) توری ليکلای شئ؟
- جومات د څه لپاره جوړ شوی دی؟

**کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست د کيسې خوا د دويم تصوير په هکله د تمرين په کتاب کې يو څه رسم کړي او هم د هجا کلمې ولولي.



**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:
- د /ه/ توري شکل به د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني.
- د /ا/، /ل/ او /ه/ تورو له حرکتونو سره بلد شي.
- له /ا/، /ل/ او /ه/ تورو څخه به د جوړو شوو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو د دویمې کیسې د انځورونو په اړه به پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.
- د /ا/، /ل/ او /ه/ تورو بېلابېل شکلونه به ولیکلای شي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه**(۷دقیقې)

**د غږونو اورېدل: نوی غږ: /هـ/**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه شی وینئ؟ (پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي).
۲. زده‌کووونکو ته ووایاست چې د(هګۍ) کلمې لومړی غږ /هـ/ دی.
۳. ښوونکی: اوس به موږ په ځینو کلمو کې لومړی غږ ته غوږ ونیسو.
۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې غږ /ه/ دی. ښوونکی: لومړی کلمه /هګۍ/ ده. دغه کلمه په /هـ/ پیلېږي، ځکه زه لاس پورته کوم.
۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /کتاب/ دی. دغه کلمه په /هـ/ نه پیلېږي. ځکه زه لاس نه پورته کوم.
۶. زده‌کوونکو ته ووایاست چې راتلونکې کلمه /هلال/ دی، دغه کلمه په /هـ/ پیلېږي. ځکه زه لاس پورته کوم.
۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، اوس به تاسو دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /هلک/ ده. لومړی غږ یې څه شی دی؟ (ښوونکی او زده‌کوونکی: /هـ/).
۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه: هګۍ، هلال، هادي او نورو مثالونو سره، لکه: هلک، هارون او... دوام ورکړئ.
۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو دغه فعالیت ترسره کړئ. ووایاست، کلمه /هګۍ/ ده. کلمه په /هـ/ پیلېږي، لاسونه پورته کړئ. که نه، لاسونه مه پورته کوئ لومړی کلمه /هګۍ/ ده. زده‌کوونکي: (لاسونه پورته)
۱۰. هغوی ته راتلونکې کلمې /هلال، موږ/ ووایاست، پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي. له /هـ/ توري سره او له /هـ/ پرته تورو سره دوام ورکړئ (ځینې لاسونه پورته، ځینې لاسونه ښکته) (هادي، ښوونکی، هاشم ..)
۱۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دویم انځور ته وګوري، (پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي).
۱۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (بهي) کلمې منځنی غږ /ـهـ/ دی.
۱۳. ووایاست، موږ به په ځینو کلمو کې منځني غږ ته غوږ ونیسو.
۱۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه

تاسو زیاتې کلمې ترسره کړئ. له ورته مثالونو لکه: بهي، سهیل، بهر او له نورو مثالونو سره، لکه: سهار، تهمینه او ... دوام ورکړئ.

۱۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دریم انځور ته وګوري. په انځور کې څه شی وینئ (پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي)
۱۶. زده‌کوونکو ته ووایاست، د (ونه) کلمې وروستي غږ /ـه/ دی.
۱۷. ووایاست، موږ به په ځینو لغتونو کې وروستي غږ ته غوږ ونیسو.
۱۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس به په دې طریقه تاسو له ورته مثالونو لکه: ونه، منه، سوله او له نورو مثالونو سره لکه: غله، تله او ...

### د توري د نورو شکلونو تدریس
(۱۳ دقیقې)

۱. پرتختې باندې د تمرکز توري ولیکئ.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په خپلو کتابونو کې کلیدي انځورونو ته وګوري.
۳. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د شیانو نومونه او د کلمې لومړی غږ په ګوته کړئ.
۴. له زده‌کوونکو وغواړئ چې پر خپل کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې په کلیدي کلمې کې د تورو د غږ استازیتوب کوي او د هغو د (فتحې، کسرې او ضمې) اړه حرکتونه ښيي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د کلمې غږونه ولولئ.
۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل /ـهـ/ پر تختې ولیکئ.
۶. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او د سمبول /ـهـ/ غږ ووایي.
۷. زده‌کوونکو ته ووایاست کله چې په ګډه غږ ادا کوي توری په خپله ګوته وښاري.
۸. د توري خط له ښارلو وروسته، د توري غږ ووایاست. /ـهـ/
۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری د کلمې په وروستۍ برخه کې بل شکل لري. دغه شکل (ـه) پر تختې باندې ولیکئ.
۱۰. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او د سمبول /ـه/ غږ ووایي.
۱۱. زده‌کوونکو ته ووایاست، کله چې په ګډه سره غږ ادا کوي توری په خپله ګوته وښاري.
۱۲. د توري خط له ښارلو وروسته، د توري غږ ووایاست.
۱۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته یو په یو اشاره وکړي او کله چې اشاره کوي غږ دې ووایي.

### هجا یې کړئ
**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

۱. د توري حرکتونه (دریمه ګرښه) هَـ، هِـ او هُـ پر تختې ولیکئ.
۲. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /هـ/ دی چې د /هَـ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.
۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست دغه توري /هـ/ دی چې /هِـ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.
۴. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /هـ/ دی چې د /هُـ/ په حرکت سره توپیر پیدا کوي.
۵. سېلابونو ته یو په یو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه یې غږ ووایاست.
۶. زده‌کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړي او په جوړه ییزه توګه یې ووایي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.
۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۸. زده‌کوونکو ته ووایئ چې د تورو حرکتونه په کور کې تمرین کړي.

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین-وېش او ترکیب**

پر تختې باندې د تورو لومړی ترکیبي کلمه
الله جلّ جلاله = الله جل جلاله. ولیکئ لکه څنګه چې په کتاب کې لیکل شوي ده.
۱. پر تختې باندې لومړی ترکیبي کلمه اللهُ جَلَّ جَلَالُهُ =الله جَلّ جَلَالُهُ ولیکئ لکه څنګه چې په کتاب کې لیکل ش
۱. مخکې له دې چې د کلمو په لوستلو پیل وکړئ، زده‌کوونکو ته وښیئ چې څرنګه یې هیجاګانې ورو، ورو ادا کړي.
۲. کله چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.
۳. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمې په ارامه توګه، تکرار کړئ.
۴. دغه پراو د دویمې کلمې هلال = هـ ـلال شي لپاره هم تکرار کړئ.

۵. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په جوړه يي توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړئ.
٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
٧. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د دې کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

## انځوريزه کيسه(۲) (۱۵دقيقې)

### له لوستلو څخه مخکې

د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه
۱. زده‌کوونکي دې د خپل کتاب هغې انځوريزې کيسې ته وګوري چې تېره ورځ يې لوستلې وه.
۲. له زده‌کوونکو څخه د کيسې د عنوان په اړه پوښتنه وکړئ. دا زده‌کوونکي فکر کولو ته اړ کوي چې کېدای شي په کيسه کې د جومات په اړه به څه ويل شوي وي.

### د لوستلو پرمهال

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د لوستلو د انځوريزې کيسې د تصويرونو په اړه فکر وکړي.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري داړ ترلاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره کوي. هغه څه چې هغوی يې په انځور کې ګوري په اړه يې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي چې په انځور کې څه ګوري د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې ګوري.
۳. د ۲،۳او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.
۴. زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وګورو چې په انځور کې څه پېښېږي؟

### له لوستلو وروسته

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه يې وړاندوينه سمه وه که نه، (هو/ نه)
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې له تاسو څخه د کيسې په اړه ځينې پوښتنې کوم.
۳. لومړۍ پوښتنه: په دويم تصوير کې څوک جومات ته روان دي؟

له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي او ځواب له خپل ملګري سره شريک کړي.

وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې له ټولګي سره ځواب شريک کړي. (ځواب: زين الله او ليلا له خپل پلار سره جومات ته روان وو.)
۴. دويمه پوښتنه دا: څوک له جومات څخه کور ته را روان دي.
زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا درېو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه له ټولګيوالو سره شريک کړئ.
(ځواب: ليلا او زين الله له جومات څخه کور ته را روان دي
۵. بله يوه ذهني پوښتنه: کله چې تاسې په جومات کې يئ، دلته څه شيان وينئ؟
زده‌کوونکو ته ووایاست، څوک په ځواب پوهېږي.
پرېږدئ چې يو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.
۵. زده‌کوونکي و هڅوئ چې له ليکل شوو تورو څخه توري وليکي.

## املا (۱۰ دقيقې)

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د تمرين په کتابونو کې نوي توري او کلمې وليکي.
۲. ووایاست، لومړی توری / ا / دی او پرېږدئ چې زده‌کوونکي لومړی نوی توری په هوا کې وليکي، وروسته له هغه يې د تمرين په کتابونو کې وليکي. کله چې هغوی توری ليکي، پرېږدئ چې غږ يې ووايي.
۳. ورته کار د دغو تورو او کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
ـا، ـلـ ، ـل - هـ، ـهـ ، ـه - لالا.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

الف – ارزونه:
- د (هـ) توري اواز ويلای شئ؟
- د (هـ) توري ليکلای شئ؟
- د (هـ) توري د کلمې په منځ کې کوم شکل لري؟

**کورنۍ دنده:**
زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست توري دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

## د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (ل) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(ل) توري په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**ځلورمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** ګاونډی **توري:** ب، م

### د اونۍ د زده‌کړې موخې

د دې اونۍ په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

١. د /ب/ او /م/ توري شکلونه، نوم او غږ وپېژني او وبه يې ليکي.
٢. د /ب/ او /م/ توري شکلونه د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني.
٣. د /ب/ او /م/ توري حرکتونه وپېژني.
٤. له /ب/ او /م/ او نورو لوستل شوو تورو څخه به جوړې شوې کلمې په سېلابونو باندې وېش او ترکيب کړي.
٥. د اورېدلو او لوستلو کيسو د انځورونو په اړه به پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او د انځورونو نومونه واخلي او يا يې نوم وليکلی شي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- له نورو سره د مرستې په ارزښت وپوهېږي.

### د دې اونۍ لپاره ځانګړې يادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- د لومړۍ او دويمې اونۍ لارښوونې په پام کې ونيسئ.
- توري په هوا کې وليکئ، بيا يې له زده کوونکو سره په ګډه په هوا کې وليکئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعاليت څو ځلې تکرار کړي.
- زده کوونکي دې دغو تورو تمرين وکړي چې مخکې يې لوستلي وي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې يو انځور رسم کړي او د هغه په هکله يوه کلمه وليکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي له نورو سره د مرستې کولو په ارزښت پوهوي.
- زده کوونکي د (ب، م) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

### د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

**ځنګلي شات**

کوتره او **چونچڼه ګاونډیاني** وې. **کاغی** د دوی د کورونو څنګ ته ځاله جوړوله، خو هغه يوازې وه او کار زيات و. کوتره او چونچڼه يې مرستې ته ورغلې.* کوترې به خس او خاشې راوړلې. چونچڼې به له کاغی سره هغه يو د بل پر سر اېښودې.



کار خلاص شو. کاغی مننه وکړه. کوتره او چونچڼه خپلو ځالو ته والوتې. کوتره پوه شوه چې کاغی وږی ده او د خوراک لپاره څه نه لري.** له خپل کور څخه يې ځنګلي شات ورته راوړل. کاغی ترې خوشحاله شوه او مننه يې ترې وکړه.

**د زده کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:
- د /ب/ توري شکل، نوم او غږ وپېژني او ويې ليکي.
- د /ب/ توري حرکتونه وپېژني.
- د /ب/ او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو ويش او ترکيب وکړي.
- د اوريدلو د کيسې د انځور په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پيل (۵) دقيقې**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه: (۷ دقيقې)**

**د غږونو اورېدل: نوی غږ /ب/**

۱. د زده کوونکو پاملرنه لومړي انځور ته راواړوئ چې په تصويرکې څه شی وينئ؟

۲. زده کوونکو ته ووایاست چې لومړی غږ / ب/ دی.

۳. زده کوونکو ته ووایاست، که چیرې کلمه د /ب/ په توري پیلېږي خپل لاسونه دې پورته او که کلمه د /ب/ په توري نه پیلېږي لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: بوټ، بابا، بادام، بادرنګ، باد، ونه، قلم، کتاب، بلال، ګل، بهرام

**۲. د تورو او کلمو لوستل او ليکل (۱۳ دقيقې)**

۱. پرتختې باندې د تمرکز وړ توری وليکئ، د توري نوم بې او غږيې / ب/ معرفي کړئ.

۲. توري ته اشاره وکړئ او له زده کوونکو څخه د توري د غږ پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بيا دې زده کوونکي ځواب ورکړي.

۳. توری په هوا کې وليکئ او پرېږدئ چې زده کوونکي تاسو وڅاري، بيا دې دوی په خپله تر سره کړي.

۴. زده کوونکي دې خپل کتاب ته وګوري او کله چې په ګډه غږ ادا کوئ، په خپلې ګوتې دې وڅاري.

۵. د توري له څارنې وروسته، د توري غږ ووایاست.

۶. زده کوونکو ته ووایاست چې خپل پنسل واخلي او دغه توری د خپل تمرين په کتاب کې ۵ ځلې وليکي.



**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره بَ، بِ، بُ (حرکتونه) پر تختې وليکئ.**

۱. لومړی سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست چې توری ب دی چې د بَ له حرکت سره يې غږ توپير پيداکوي. له زده کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

۲. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست توری ب دی چې د بِ له حرکت سره يې غږ توپير پيداکوي.

۳. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست چې توری ب دی چې د بُ له حرکت سره يې غږ توپير پيداکوي. له زده کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

۴. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده کوونکو سره يې په ګډه غږ ووایاست.

۵. زده کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي او سېلابونه په جوړه ييزه توګه ووايي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال هغوی بايد په خپله ګوته سېلابونه وڅاري.

۶. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده کوونکو ته ووایاست، د توري حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین ـ وېشل او یوځای کول (ترکیب)**

۱. پر تختې لومړۍ ترکیبي کلمه د کتاب مطابق <u>هـ لال = هلال</u> چې دوه سېلابه لري، ولیکئ.
۲. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره یوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره یې ورو، ورو ولولئ.
۳. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.
٤. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه په ګډه تکرار کړئ.
٥. دغه پړاو په دویمه او دریمه کلمه هم تر سره کړئ:
<u>لا له = لاله او لا لا = لالا</u>
٦. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په جوړه ییزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
٧. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
٨. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**د اورېدلو کیسه: (۱۵ دقیقې)** 

**له اورېدلو مخکې**

**لغتونه:**

**د انځور په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه**

۱. له زده‌کوونکو سره د دریو یا څلورو نوو لغتونو په اړه بحث وکړئ، دغه **ګاونډی**(همسایه)، **چوڼچڼه**(مرغی، چوغکه) **کاغی**(کارغه) دي چې باید درې ځلې یې له تاسو وروسته تکرار کړي.
۲. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې لومړی لغت(ګاونډی) څه معنا لري؟ د ځواب ورکولو لپاره وخت ورکړئ او وروسته د (ګاونډي) کلمې معنا ورته وکړئ: (هغه خلک چې د چا ترڅنګ اوسېږي همسایه).
۳. د انځور په اړه له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ. هغه څه خلاصه کړئ چې زده‌کوونکو په انځور کې لیدلي دي.
٤. پرېږدئ چې زده‌کوونکي د کیسې عنوان واوري. بیا د کیسې د عنوان په اړه له هغوی سره بحث وکړئ.

٥. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ، څه فکر کوي چې کیسه به د څه شي په اړه وي؟ پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي. ځواب مه ورکوئ، هغوی ته ووایاست چې واوري چې وړاندوینه یې سمه ده که نه؟

**د اورېدلو پر مهال:**

۱. کیسه ورو، ورو په مناسب لحن، څېره او غږ بیان کړئ.په کیسه کې د پېښو په اړه له اشارو او حرکتونو څخه کار واخلئ چې زده‌کوونکي مو وڅاري چې څه پېښېږي. که چېرې اصلي کرکټر ځینې کړنې او حرکات تر سره کوي، پرېږدئ چې زده‌کوونکي هم هغسې کړنې او حرکات تر سره کړي.
۲. کله چې کیسه لولئ دوه ځلې په کې ځنډ وکړئ او له زده‌کوونکو پوښتنه کوئ: څه فکر کوئ چې له دې وروسته به په کیسه کې څه پېښ شي؟ یا ولې ځینې شیان پېښېږي.

* کوترې او چوڼچڼې به څه مرسته کړې وي؟

** ستاسو په فکر کوترې به څه کړي وي؟

۳.کیسه یو ځل بیا ولولئ.

**له اورېدلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د کیسې په اړه یې وړاندوینه سمه وه که نه؟(هو/ نه)
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم:
لومړۍ پوښتنه! <u>کاغی چېرته ځاله جوړوله؟</u> (ځواب: د کوترې او چوڼچڼې کورونو ته نژدې.)
دویمه پوښتنه! <u>کوترې له کاغی سره څه مرسته وکړه؟</u>
ځواب :( کوترې به خس او خاشې راوړلې.)
ذهني پوښتنه: <u>له ګاونډیانو سره مرسته کول څه ګټې لري؟</u>
۳.پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

– ارزونه:
- د (ب) توري غږ ویلای شئ؟
- د (ب) توري لیکلای شئ؟
- د (ب) توري حرکتونه په جدول کې راوښایاست؟

**کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د اورېدلو کیسه د کورنۍ له غړو سره شریکه او هم دې د (ب) توری درې ځلې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي و کولای شي چې:

- د /ب/ توري شکل د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني او ویې لیکي.
- د /ب/ توري حرکتونه به وپېژني.
- د /ب/ او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو ویش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو دانځوریزې کیسې او تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه اونظر ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر لوست ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه: (۷ دقیقې)**

**د تمرین شوي غږ تکرار: /ب/**

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ چې په تصویر کې څه شی ویني؟

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د بوټ د کلمې لومړی غږ /ب/ دی.

۳. زده‌کوونکو ته وواياست، که چیرې کلمه د /ب/ په نوي غږ پیلېږي، خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه په خپل عادي حالت دې پاتې شي. لاندې مثالونه وکاروئ: بوټ، کباب، کب، ونه، بادرنګ، بلبل، اوبه .

۴. له زده‌کوونکو سره د دویم انځور په اړه بحث وکړئ چې د /کباب/ کلمې منځنی غږ / بـ/ دی.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست، که چیرې د (بـ) غږ د کلمې په منځ کې وي خپل لاسونه پورته او که نه ښکته کړي. لاندې مثالونه وکاروئ :کباب، بلبل، کابل، زابل، لرګی، کتاب، اودس، تبر.

۶. له زده‌کوونکو سره د دریم انځور په اړه بحث وکړئ چې د کب د کلمې وروستی غږ / ـب/ ده.

۷. زده‌کوونکو ته وواياست، که چیرې د /ب/ غږ د کلمې په پای کې وي خپل لاسونه پورته کړئ او که نه وي



لاسونه مه پورته کوئ. لاندې مثالونه وکاروئ : کب، کتاب، کباب، بادام، کابل، میز، ترکیب، غریب، قلم.

**د توري د نورو شکلونو تدریس (۱۳ دقیقې)**

۱. پر تختې باندې لومړی کلمه (بوټ) ولیکئ او د لومړي توري غږ /بـ/ معرفي کړئ.

۲. لومړی غږ ته اشاره وکړئ او زده‌کوونکو ته وواياست چې (بوټ) هغه کلمه ده چې /بـ/ یې په پیل کې راځي.

۳. توري ته اشاره وکړئ، له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ پرېږدئ چې لومړی یې په ګډه او بیا یو یو زده‌کوونکی ځواب ورکړي.

۴. په هوا کې توری ولیکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي تاسو وڅاري، وروسته دې بیا هغوی په خپله تر سره کړي.

۵. زده‌کوونکې دې خپلو کتابونو ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، توری دې په خپله ګوته وڅاري او بیا دې د توري غږ ولولي.

٦. زده‌کوونکو ته وواياست چې خپل پنسل واخلي او د خپل تمرين په کتاب کې د /ب/ توری (۵) ځلې وليکي.

٧. د (کباب او کب) کلمو په منځ او پای کې دې د تورو لپاره ورته پړاوونه تعقيب کړي.

**نوي توري د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

١. بَــ، بِــ او بُــ (سپلابونه) پر تختې وليکئ.

٢. لومړي سپلاب ته اشاره وکړئ. دغه توری بـ دی چې د (بَــ) له حرکت سره يې سپلاب توپير پيداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سپلاب غږ وواياست.

٣. دويم سپلاب ته اشاره وکړئ. دغه توری بـ دی چې د بُــ له حرکت سره يې سپلاب توپير پيدا کوي.

٤. دريم سپلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری هم بـ دی چې د بِــ حرکت په واسطه يې سپلاب توپير پيدا کوي.

٥. زده‌کوونکو ته وواياست، په خپل کتاب کې سپلابونه پيدا کړي. هغوی ته وواياست چې سپلابونه په جوړه يې توګه ووايي. د سپلابونو د لوستلو پر مهال هغوی بايد په خپله ګوته باندې سپلابونه وښاري.

٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

٧. زده‌کوونکو ته وواياست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

**هجا يې کړئ (۵ دقيقې)**

**د سپلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين - وېش او ترکيب:** پرتختې لومړی ترکيبي کلمه د کتاب مطابق بُلـ ـبل = بُلبل چې دوه سپلابه لري وليکئ.

١. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سپلابونه سره يوځای کړي، د سپلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.

٢. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سپلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځای ولولي.

٣. د سپلابونو په يو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

٤. دغه پړاوپه دويمه او دريمه کلمه کې هم تر سره کړئ: بِـ ـلال = بِلال او باب = باب

٥. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په جوړه ييزه توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړي.

٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

٧. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

**انځوريزه کيسه (١)(١٥ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

**د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوينه**

١. زده‌کوونکو ته وواياست چې هغوی به د يوې انځوريزې کيسې د لوستلو لپاره چمتو و واوسي.

٢. زده‌کوونکو ته عنوان وواياست. د کيسې عنوان د (ګاونډي حقونه) دي. دا زده‌کوونکي فکر ته اړ کوي چې کېدای شي کيسه به د ګاونډي حقوق وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه.

- د لومړي تصوير جمله: زموږ کلی د غره په لمن کې دی.
- د دويم تصوير جمله: بريالی ز موږ ګاونډی دی.
- د دريم تصوير جمله: بريالي کتاب راکړ.
- د څلورم تصوير جمله: زه او لالا مې له ګاونډيانو سره مرسته کوو.

**د لوستلو پرمهال**

١. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوريزې کيسې تصويرونو ته وګوري.

٢. زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته وواياست چې په لومړي انځور کې څه ګوري. ډاډ تر لاسه کړئ چې زده‌کوونکي يې په

خپل کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووايي چې په انځور کې څه ګوري؟ کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې ګوري.

۳. د ۲،۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴.زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توګه و وايم چې په انځور کې څه شی وينئ.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه وه که نه؟( هو/ نه)

۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې اوس د کيسې په اړه ځينې پوښتنې کوم:

لومړی پوښتنه: زمونږ کلی چېرته دی؟ ځواب:(زمونږ کلی د غره په لمن کې دی.)

دويمه پوښتنه: زه او لالا مې له چا سره مرسته کوو؟ (ځواب: زه او لالا مې له ګاونډيانو سره مرسته کوو.)

ذهني پوښتنه: ګاونډيان له يو بل سره څه ډول مرستې کولی شي؟

۳.پرېږدئ چې ځينې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

الف – ارزونه:

- د (ب) شکل د يوې کلمې په منځ کې را ښودلای شئ؟
- د (ب) شکل د کلمې په پای کې څه ډول دی؟
- د (ب) توري حرکات په جدول کې ويلای شئ؟

ب - کورنۍ دنده: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له کتاب سره سم د /ب/ توري د تمرين په کتاب کې وليکي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د /م/ توري شکل، نوم او غږ وپېژني.
- د /م/ توري حرکتونه وپېژني.
- د /م/ او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو ویش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو د انځوریزې کیسې او تصویرونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.
- د /م/ او نورو لوستل شوو تورو څخه کلمې جوړې او ولیکي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر لوست ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه(۷دقیقې)**

**د تمرین شوي غږ تکرار: /م/**

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ چې په تصویر کې څه شي وینئ؟

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د(مڼې) کلمې لومړی غږ /م/ دی.

۳. زده‌کوونکو ته وواياست، که چیرې کلمه د /م/ په غږ پیلېږي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه وي لاسونه دې نه پورته کوي حالت دې پاتې شي لاندې مثالونه وکاروئ : مڼه، ماما، ام، تخته، پنسل، مل، ګل، قلم، میرویس.

**د تورو او کلمو لوستل(۱۳ دقیقې)**

۱. پر تختې د تمرکز وړ توری ولیکئ، د توري نوم /میم/ او غږ /م/ معرفي کړئ

۲. توري ته اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بیا دې یوازې زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

۳. توري په هوا کې ولیکئ او پربږدئ چې زده‌کوونکي تاسو وګوري، بیا دې دوی په خپله ترسره کړي.



۴. زده‌کوونکي دې خپل کتاب ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، په خپلې ګوتې دې وښاري.

۵. د توري له ښارنې وروسته، د توري غږ وواياست.

۶. زده‌کوونکو ته وواياست چې خپل پنسل واخلي او دغه توري د خپل تمرین په کتاب کې ۵ ځلې ولیکي.

**نوی توری د (فتحې،کسرې او ضمې) له حرکت سره**

۱. مَـ، مِـ، مُـ سېلابونه پر تختې ولیکئ.

۲. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری مـ دی چې د مَـ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.

۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست دغه توری مـ دی چې د مِـ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکوي.

۴. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری مـ دی چې د مُـ له حرکت سره یې

سپلاب توپیر پیداکوي.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست، په خپل كتاب كې سپلابونه پيدا كړي. هغوى ته وواياست چې سپلابونه په جوړه يې توګه ووايي. د سپلابونو د لوستلو پر مهال هغوى بايد په خپله ګوته سپلابونه وښاري.

٦. په ټولګي كې وګرځئ، له هغو زده‌كوونكو سره مرسته وكړئ چې ستونزې لري .

٧. زده‌كوونكو ته وواياست چې د تورو حركتونه په كور كې تمرين كړي.

**هجا يې كړئ**

**د سپلاب لرونكو كلمو د لوستلو تمرين ـ وېش او تركيب**

١. پر تختې د كتاب لومړى تركيبي كلمه د( اِلـ ـهام) چې دوه سپلابه لري وليكئ.

٢. مخكې له دې چې هغوى د كلمو د لوستلو لپاره سپلابونه سره يوځاى كړي،د سپلابونو په كارولوسره يې ورو، ورو ولولئ.

٣. په داسې حال كې چې تاسو خپله ګوته د هر سپلاب لاندې تېروئ، له زده‌كوونكو وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځاى ولولي.

٤. د سپلابونو په يو ځاى كولو سره، كلمه په ارامه توګه، په ګډه تكرار كړئ.

٥. دغه مرحله په دويمه او دريمه كلمه هم ترسره كړئ ام، بام

٦. له زده‌كوونكو وغواړئ چې جوړه يې كار وكړي، هر يو په نوبت سره په خپلو كتابونو كې د راغلو كلمو وېش او تركيب وكړي .

٧. په ټولګي كې وګرځئ، له هغو زده‌كوونكو سره مرسته وكړئ چې ستونزې لري.

**انځوريزه كيسه(١)(١۵ دقيقې)**

**له اورېدلو مخكې**

**د انځورونو او عنوان په كارولو سره د متن په اړه وړاندوينه**

**(غره لمن، ګاونډى، مرسته**

١.له زده‌كوونكو سره د نويو لغتونو په اړه بحث وكړئ، دغه لغتونه د غره لمن، ګاونډى، مرسته دي.

١. د انځور په اړه له زده‌كوونكو سره بحث وكړئ او هغه څه خلاصه كړئ چې زده‌كوونكو په انځور كې ليدلي دي.

٢. پرېږدې چې زده‌كوونكي د كيسې عنوان ولولي. بيا د كيسې د عنوان په اړه له هغوى سره بحث وكړئ.

٣. له زده‌كوونكو څخه پوښتنه وكړئ، څه فكر كوئ چې كيسه به د څه شي په اړه وي؟ پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌كوونكي ځواب وركړي. ځواب مه وركوئ، هغوى ته وواياست چې كيسه وګوري چې د هغوى وړاندوينه سمه وه كه نه؟

**د لوستلو څخه مخكې**

١. زده‌كوونكي دې خپل كتاب ته وګوري او دلته دې هغې انځوريزې كيسې ته وګوري چې پرون يې لوستلې وه.

٢. هغوى ته يو ځل بيا عنوان وواياست او ورڅخه پوښتنه وكړئ چې كيسه د څه شي په اړه وه؟

**د لوستلو پرمهال**

١.زده‌كوونكو ته وواياست چې په خپل كتاب كې د انځوريزې كيسې انځورونو ته وګوري.

٢.هغوى ته وواياست چې لومړي انځور ته وګوري. ډاډ تر لاسه كړئ چې ټول زده‌كوونكي انځور ته اشاره وكړي. هغه څه چې هغوى يې په انځور كې ګوري په اړه يې ورسره بحث وكړئ. پرېږدئ چې زده‌كوونكي ځواب وركړي او ووايي چې په انځور كې څه ګوري. كله چې ګڼ شمېر زده‌كوونكي ځواب وركوي، د هغه څه لنډيز وړاندې كړئ چې په انځور كې يې ګوري.

٣.هغوى ته وواياست چې خپلو ملګرو / ټولګيوالو ته د ٣،٢ او ۴ انځور په اړه ووايي چې دلته څه ګوري.

۴.زده‌كوونكو ته وواياست چې انځوريزه كيسه خپلو ټولګيوالو ته ووايي، ډاډ تر لاسه كړئ، كله چې دغه فعاليت سرته رسېږي بايد ټول زده‌كوونكي انځورونو ته اشاره وكړي.

**له لوستلو وروسته**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه به د کیسې په اړه ځینې پوښتنې وکړم.

لومړۍ پوښتنه: زموږ کلي چېر ته دی؟ (ځواب: زموږ کلي د غره په لمن کې دی.)

دویمه پوښتنه: بریالی د چا گاونډی دی؟(ځواب: بریالی زموږ گاونډی دی.)

ذهني پوښتنه: له گاونډي سره مرسته کول ولې مهم دي؟

۲.پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي هم پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

۳.زده‌کوونکو ته ووایاست چې سبا ته به تاسو دغه متن یو ځل بیا ولولئ او تاسو به نورې پوښتنې هم وکړئ.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

الف – ارزونه: ښوونکی دی له خپل تدریس څخه د داې ترلاس کولو لپاره لاندې پوښتنې وکړئ.

- د (م) توري غږ و وایئ؟
- د (م) توری ولیکې؟
- انځوریزه کیسه د څه په باره کې وه؟
- د (م) حرکات په جدول کې را وښایاست؟

ب - کورنۍ دنده: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د تمرین په کتاب کې توري او کلمې ولیکي.

**د زده‌کړې موخې**
د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:
- د (م) توري شکل به د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني.
- د (م) توري حرکتونه به وپېژني.
- له (م) او نورو لوستل شوو تورو څخه به د جوړو شوو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو د انځوریزې کیسې په اړه به پوښتنو ته ځوابونه اونظر ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**
سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه(۷دقیقې)**

**د تمرین شوي غږ تکرار: /م/**
۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (منې) کلمې لومړی غږ /مـ/ دی.
۳. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې کلمه د /م/ په غږ پیلېږي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه وي لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ : منه، منان، ناک، کتاب، مور، مینه.
٤. له زده‌کوونکو سره د دویم انځور په اړه بحث وکړئ.
۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (لیمو) کلمې منځنی غږ /ـمـ/ دی.
٦. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې نوی غږ د کلمې په منځ کې وي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه وي لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: لیمو، چمن، مومن، حکیم، کور، مېلمه، رحمت
۷. له زده‌کوونکو سره د دریم انځور په اړه بحث وکړئ.
۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (قلم) کلمې وروستی غږ /ـم/ دی.
۹. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې نوی غږ د کلمې په پای کې وي خپل لاسونه دې پورته کړي لاندې مثالونه وکاروئ: قلم، نسیم، میلاد، پلار، شبنم، ورور، مور، موټر، کریم



**د توري د نورو شکلونو تدریس (۱۳دقیقې)**
۱. پر تختې باندې لومړی کلمه منه ولیکئ او د توري غږ /مـ/ معرفي کړئ.
۲. لومړي غږ ته اشاره وکړئ او زده‌کوونکو ته ووایاست چې دا هغه کلمه ده چې /مـ/ یې په پیل کې راځي.
۳. توري ته اشاره وکړئ، له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بیا دې زده‌کوونکي په یوازې توګه ځواب ورکړي.
٤. په هوا کې توری ولیکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي

تاسو وښاري، وروسته دې بیا هغوی په خپله تر سره کړي.

٥. زده کوونکې دې خپلو کتابونو ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، توري دې په خپله ګوته وښاري.

٦. د توري له ښارلو وروسته، د توري غږ وواياست.

٧. زده کوونکو ته وواياست چې خپل پنسل واخلي د خپل تمرين په کتاب کې يې ٥ ځلې وليکي.

٨. د کلمې په منځ او پای کې د تورو لپاره ورته مرحله تعقيب کړئ.

**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

١. مَ، مِ، مُ سېلابونه پر تختې باندې وليکئ.

٢. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته وواياست چې دغه توری م دی چې د (مَ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيداکوي. له زده کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.

٣. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته وواياست دغه توري م دی چې د (مِ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيدا کوي.

٤. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته وواياست چې دغه توری ـم دی چې د (ـمُ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيدا کوي.

٥. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده کوونکو سره په ګډه غږ وواياست.

٦. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي. هغوی ته وواياست چې سېلابونه په جوړه يې توګه ووايي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال بايد په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.

٧. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

٨. زده کوونکو ته وواياست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

**هجا يې کړئ**

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين - وېش او ترکيب**

١. پر تختې لومړی کلمه د کتاب مطابق ماما = ما - ما چې يو سېلاب لري وليکئ.

٢. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره يوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.

٣. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځای ولولي.

٤. د سېلابونو په يو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

٥. دغه مرحله په دويمه او دريمه کلمه کې هم تر سره کړئ: بمبه = بمـ ـبه، ملهم = ملـ ـهم

٦. له زده کوونکو وغواړئ چې په جوړه توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړي.

٧. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري او اصلاحي نظر ورکړئ.

٨. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

**انځوريزه کيسه(٢) (١٥ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

**د عنوان او انځور په کارولو سره د متن په اړه وړاندوينه**

١. زده کوونکو ته وواياست چې هغوی به د انځوريزې کيسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

٢. زده کوونکو ته عنوان وواياست. د کيسې عنوان (د ګاونډي حقونه ) دی. دا موږ فکر ته اړ کوي چې کېدای شي کيسه به د ګاونډي حقونه وي، له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

- د لومړي تصوير جمله: مريم د حميد خور ده.

• د دويم تصوير جمله: مريم او حميد په باغچه کې گرځي.

د دريم تصوير جمله: مريم منې شکوي.

د څلورم تصوير جمله: مريم خپل گاونډي ته مېوه ورکوي.

**د لوستلو پرمهال:**

۱. زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوريزې کيسې تصويرونو ته وگوري.

۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته وواياست چې په لومړي انځور کې څه گوري. ډاډ تر لاسه کړئ چې زده‌کوونکي يې په کتاب کې گوري. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووايي چې په انځور کې څه گوري؟ کله چې گڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې گوري.

۳.د ۲، ۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴.زده‌کوونکو ته وواياست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وگورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توگه ووايم چې په انځور کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه وه که نه؟ ( هو/ نه)

۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې د کيسې په اړه ځيني پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: په کيسه کې مريم د چا خور ده؟

له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته وواياست چې ځواب له خپل ملگري سره شريک کړي.

له هغه وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولگي سره ځواب شريک کړي. (ځواب: په کيسه کې مريم د حميد خور ده).

۴.دويمه پوښتنه: مريم او حميد چېرته گرځېدل؟

زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شريک کړي. وروسته بيا خپل ځواب له ټولگيوالو سره شريک کړئ. ځواب (مريم او حميد په باغچه کې گرځېدل).

۵. ذهني پوښتنه:له گاونډيانو سره مرسته او نېکي کول څه گټې لري؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې ځيني زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته وواياست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

الف- ارزونه: ښوونکی دې له خپل تدريس څخه د ډاډ اخيستنې لپاره لاندې پوښتنې وکړي.

- د /م/ توري شکل د کلمې په منځ او پای کې ښوولای شئ؟
- د /م/ په جدول کې د /م/ توري حرکتونه ويلای شئ؟

ب کورنۍ دنده: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دويمې کيسې په تصويرونو د کورنۍ له غړو سره خبرې وکړي او هم دې د (م) توري بڼې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

زده کوونکي دې د (ب) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

- ښوونکي دی له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(ب) توری د تمرين په کتاب کې په کړکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د کلمو په پیل، منځ او پای کې به د /ب/ او /م/ توري تکرار کړي.
- د /ب/ او /م/ تورو حرکتونه به تکرار کړي.
- د /ب/ او /م/ او نورو لوستل شوو تورو څخه به د جوړو شوو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو کیسې د انځورونو په اړه به خبرې وکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه(۷دقیقې)**

**د نویو غږونو او تورو بیا کتنه**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه شی وینئ؟ (پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي)

۲. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (بوټ او مڼې) کلمو لومړي غږونه (بـ او مـ) دي.

۳. زده‌کوونکو ته وواياست چې دويم انځور ته وګوري. په انځور کې څه شئ وینئ؟

٤. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (کباب او لیمو) کلمو د منځ غږونه (ـبـ او ـمـ) دي.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست چې دريم انځور ته وګوري. په انځور کې څه شئ وینئ؟

٦. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د(کب او قلم) کلمو د پای غږونه (ـب او ـم) دي.

**د توري او غږونو د نورو شکلونو تدريس (۱۰ دقیقې)**

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د زده‌کوونکي په کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې کلیدي انځور ته نږدې د تورو د غږ استازيتوب کوي.



۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې باندې ولیکئ.

۳. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ يې ـبـ او ـمـ ووايئ.

٤. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي، هغه توري په خپله ګوته وځاري.

۵. د توري له ځارلو وروسته، غږ وواياست.

٦. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په پای کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې باندې ولیکئ.

۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ يې ـب او ـم ووايي.

۸. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي توري په خپله ګوته وځاري.

۹. زده‌کوونکو ته وواياست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته يو په يو اشاره وکړي او کله چې اشاره

کوي غږ دي هم ووايي.

**د نوو تورو د (فتحې، کسرې، او ضمې) حرکتونو بیا کتنه**

۱. بَـ، بِـ، بُـ سیلابونه پر تختې باندې ولیکئ.

۲. لومړی سیلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته وواياست چې دغه توری /بـ/ دی چې د /بـ/ له حرکت سره يې سیلاب توپیر پیداکوي. له زده کوونکو سره په ګډه د سیلاب غږ ووایاست.

۳. دویم سیلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست دغه توري /مـ/ دي.چې د /مِـ/ له حرکت سره يې سیلاب توپیر پیداکړئ.

۴. دریم سیلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست چې دغه توری هم /م/ دی چې د /مَـ/ له حرکت سره يې سیلاب توپیر پیدا کوي.

۵. زده کوونکو ته ووایاست، خپل کتاب کې سیلابونه پیدا کړي. هغوی ته ووایاست چې سیلابونه په جوړه يې توګه ووايي. د سیلابونو د لوستلو پر مهال هغوی باید په خپله ګوته باندې سیلابونه وښاري.

۶. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده کوونکو ته ووایاست، د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**هجا يې کړئ (۵ دقیقې)**

**د سیلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین ـ ترکیب او وېش**

۱. پرتختې لومړی کلمه د کتاب مطابق با- با= بابا چې دوه سیلاب لري ولیکئ.

۲. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سیلابونه سره یوځای کړي، د سیلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.

۳. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سیلاب لاندې تېروئ، له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې یو ځای ولولي.

۴. د سیلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

۵. دغه پړاو په دویمه او دریمه کلمه کې هم ترسره کړئ
ما ما = ماما، ملـ ـهم= ملهم

۶. له زده کوونکو وغواړئ چې په جوړه ییزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.

۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۸. زده کوونکو ته ووایاست چې د لغتونو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**د انځوریزې کیسې بیا لوستل**
**(۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکي دې په خپل کتاب کې د انځوریزې کیسې تصویرونو ته وګوري.

۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست او ورځخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه؟پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکړي.

**د لوستلو پرمهال**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري، ډاډ ترلاسه کړئ چې ټول زده کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره وکړي. هغه څه چې هغوی يې په انځور کې ګوري په اړه يې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده کوونکي ځواب ورکړي او ووايي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې ګوري.

۲. هغوی ته ووایاست چې خپلو ملګرو / ټولګیوالو ته د ۲، ۳ او انځور په اړه ووايي چې دلته څه ګوري؟

۳. زده کوونکو ته ووایاست چې انځوریزه کیسه خپلو ټولګیوالو ته ووايي، ډاډ تر لاسه کړئ چې د فعالیت د سرته رسولو پر مهال ټول زده کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره کوي.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه وه که نه؟ ( هو/ نه)

۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې د کیسې په اړه ځينې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: پـه کیسه کې مريم څه شی شکوي؟ له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته وواياست چې ځواب له خپل ملګري سره شريک کړي.
له هغه وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګي سره ځواب شريک کړي. (ځواب: په کیسه کې مريم منې شکوي).

۴.دويمه پوښتنه: مريم منې چا ته ورکوي؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شريک کړي. وروسته بيا خپل ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړئ. ځواب (مريم منې ګاونډۍ ته ورکوي).

۵. ذهني پوښتنه: که څوک تاسو ته د خپل باغ مېوه درکړي، څه احساس به کوئ؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې ځينې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته وواياست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

**نوښتګره (تخليقي) ليکنه** 
(۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کيسو ته په کتو سره، خپلې کيسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
٤. زده کوونکو ته داسې کيسه وکړئ چې کله زه مکتب ته تلم يوه ورځ مې د خوړلو لپاره څه نه وو وړي. د تفريح په وخت کې هر ټولګيوال مې خپل خواړه خوړل خو ما څه نه لرل چې ويې خورم. د يوه ټولګيوال راته پام شو هغه خپل خواړه را سره شريک کړل. نور ټولګيوال مې هم راغلل او خپل خواړه يې راته ونيول چې له موږ سره يې وخوره. نو ما هم د نورو ټولګيوالو غوندې پوره خواړه وخوړل. زه د خپلو ټولګيوالو له مهربانۍ څخه ډېر خوشحال وم.
۵. زده کوونکو ته وواياست چې له ګاونډيانو سره د خپلو شيانو د شريکولو په اړه دې يوه کيسې ووايي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کيسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کيسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتيا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

**ارزونه:**

- د (ه) توري غږ ويلای شئ؟
- د (ه) توری ليکلای شئ؟
- جومات د څه لپاره جوړ شوي دی؟

**کورنۍ دنده:**

زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست د کينې خوا د دويم تصوير په هکله په کور کې يو څه رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د کلمو په پیل، منځ او پای کې به د (ل) او(هـ) تورو تکرار وکړي.
- د (ب)،(هـ) او (م) تورو حرکتونه به تکرار کړي.
- د کلمو وېش او ترکیب به وکړي.
- د لوستلو کیسې د انځورونو په اړه به پوښتنوته ځوابونه ورکړي.
- له لوستل شوو تورو څخه جوړې شوې کلمې ولولي او په کورکې به يې وليکي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه(۵دقیقې)**

**د نویو غږونو او تورو بیا کتنه**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځور کې څه شی وینئ؟ (پربږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي)
۲. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (لور او هګۍ) د کلمو د پیل غږونه لـ او هـ دي.
۳. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دویم انځور ته وګوري. په انځورکې څه شی وینئ؟
٤. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (کبلې او بهې) کلمو د منځ غږونه ـلـ او ـهـ دي.
۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دریم انځور ته وګوري.په انځورکې څه شی وینئ؟
٦. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې د (ګل او ونه) کلمو وروستي غږونه ـل او ـه دي.

**د توري او غږونو د نورو شکلونو بیا کتنه** ( ۵دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د زده‌کوونکي په کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې کلیدي انځور ته نږدې د تورو د غږ استازیتوب کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.
۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې ولیکئ.



۳. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ يې ـلـ، ـهـ ووايي.
٤. زده‌کوونکو ته ووایاست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي، هغه توري په خپله ګوته وځاري.
۵. د توري له ځارلو وروسته، غږ ووایاست.
٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري د کلمې په وروستۍ برخه کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې ولیکئ.
۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ يې ـل، ـه ووايئ.
۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته يو په يو اشاره وکړي او کله چې اشاره کوي غږ دې هم ووايي.

**د نوو تورو د (فتحې، کسرې او ضمې) حرکتونو بیا کتنه**

۱. بَـ، هِـ، ـمُـ، م سېلابونه پر تختې باندې ولیکئ.
۲. لومړي سېلاَب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری ب دی چې د بُ له حرکت سره يې سېلاب توپير پیدا کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.
۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست

دغه توری هـ ده چې د هِـ له حرکت سره يې سېلاب توپير پيداکوي.

۴. درېم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده کوونکو ته ووایاست چې دغه توری ـمـ دی چې د ـمُـ له حرکت سره يې سېلاب توپير کوي. همدارنګه د /مِ/ لپاره هم ورته فعاليت ترسره کړئ.
۵. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده کوونکو سره په ګډه غږ ووایاست.
۶. زده کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي. هغوی ته ووایاست چې سېلابونه په جوړه ييزه توګه ووايي. د سېلابونو د لوستلو پرمهال هغوی بايد په خپله ګوته سېلابونه وخاري.
۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۸. زده کوونکو ته ووایاست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

### هجا يې کړئ (۵دقيقې)

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين- ترکيب او وېش**

۱. پر تختې باندې لومړی ترکيبي کلمه د کتاب مطابق لالا = لا لا چې په سېلابونووېشل شوې وي وليکئ.
۲. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره يوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.
۳. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځای ولولي.
۴. د سېلابونو په يو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.
۵. دغه پړاو په دويمه او دريمه کلمه هم ترسره کړئ هلال = هـ لال او ملاله = مـ لا له .
۶. له زده کوونکو وغواړئ چې په جوړه ييزه توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۸. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

### انځوريزه کيسه(۲)(۱۰دقيقې)

**د لوستلو څخه مخکې**

۱. زده کوونکي دې خپل کتاب ته وګوري او دلته ته دې هغې انځوريزې کيسې ته وګوري چې پرون يې لوستلې وه؟
۲. هغوی ته يو ځل بيا عنوان ووایاست او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کيسه د څه شي په اړه وه؟ پرېږدئ ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکړي.

**د لوستلو پرمهال**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې کيسه دې د خپل څنګ ملګري ته ولولي.
۲. له لنډ مهال وروسته، هغوی ته ووایاست چې ملګری بدل کړي او بل ټولګيوال ته کيسه ووايي.
۳. له دوو يا درېو زده کوونکو وغواړئ چې کيسه په ټولګي کې ووايي.

### املا (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تمرين په کتابونو کې نوي توري او کلمې وليکي.
۲. ووایاست، لومړی توری / ل / دی او پرېږدئ چې زده کوونکي لومړی نوی توری په هوا کې وليکي، وروسته له هغه يې د تمرين په کتابونو کې وليکي. کله چې هغوی توری ليکي، پرېږدئ چې غږ يې ووايي.
۳. ورته کار د دغو تورو او کلمو لپاره هم ترسره کړئ: لـ ، ـلـ ، ـل ، هـ ، ـهـ ، ـه - لام، ام، بام.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل درس څخه د ډاډ اخيستنې لپاره لاندې پوښتنې وکړي.
- د لالا په کلمه کې د (لـ) توری چيرې راغلی دی په نښه کولای يې شئ؟
- د (ملاله) په کلمه کې د /ـه/ توری په نښه کولای شئ؟

**کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د دې لوست د وروستۍ برخې توري او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکي.

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (م) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (م) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**پنځمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** پاک چاپېریال **توري:** و، د

**د اونۍ د زده کړې موخې**

د دې اونۍ په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

۱. - د (و) او (د) تورو شکلونه، نومونه او غږونه وپېژني او و يې ليکي.
۲. - د (و) او (د) تورو شکلونه د کلمو په پيل، منځ او پای کې وپېژني.
۳. - د (و) او (د) تورو حرکتونه (سېلابونه) و پېژني.
۴. - د (و) - (د) او نورو لوستل شوو تورو څخه جوړې شوې کلمې په سېلابونو و وېشي او ترکيب يې کړي.
۵. - د اورېدلو او لوستلو کيسو د انځورونو اړه به پوښتنو ته ځوابونه ووايي او نوښتګره (تخليقي) کيسه به جوړه کړي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په کور او کلي کې له خلکو سره د مرستې په ارزښت وپوهېږي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې يادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- د لومړۍ او دويمې اونۍ لارښوونې په پام کې ونيسئ.
- توري په هوا کې وليکئ، بيا يې له زده کوونکو سره په ګډه په هوا کې وليکئ. له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعاليت څو ځلې تکرار کړي.
- زده کوونکي دې د هغو تورو تمرين وکړي چې مخکې يې لوستلي وي.
- زده کوونکي وهڅوئ چې يو انځور رسم کړي او د هغه په هکله يوه کلمه وليکي.
- ښوونکی دې په دې اونۍ کې زده کوونکو ته له ټولنې سره د مرستې کولو په اړه لارښوونې وکړي.
- زده کوونکي د (و، د) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

**پاک او صفا کلی**

د بر کلي لارې کوځې له **خځلو** ډکې وې. څوک به چې پر لارو تېرېدل، پزې به يې نيولې وې. ځينې کليوال ناروغه شوي وو. ډاکټرانو ورته وويل چې:*کليوال د **چټلو** خوړو او اوبو له کبله ناروغه شوي دي. د کليوالو ورپام شو چې کلی يې پاک او صفا نه دی ساتلی. د ملاصاحب نصيحت يې هم هېر کړی چې ويل به يې**، پاکي د ايمان برخه ده.



کليوالو **اشر** وکړ. د کلي لارې کوځې يې پاکې کړې. اوس هوا صفا او ښه لګېده. ماشومانو په صفا ميدانونو کې لوبې کولې. ناروغۍ ورکې شوې. کليوال خوشحاله وو.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د (و) توري شکل، نوم او غږ وپېژني او و يې ليکي.
- د (و) توري حرکتونه وپېژني.
- له ( و) او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
- د اوربدلو کيسې د انځور په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پيل (۵) دقيقې**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه: (۵ دقيقې)**

**د غږونو اورېدل: نوی غږ *او/***

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ، په تصوير کې څه وينئ؟

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د (ونې) کلمې (لغت) لومړی غږ *او/* دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چېرې کلمه په نوي غږ *او/* پيلېږي، خپل لاسونه دې پورته کړي او که کلمه د *او/* په غږ نه پيلېږي، لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: ونه، وياله، ډېره، واوره، کابل، وينې، ولې، اتل، هېواد

**۲. د تورو او کلمو لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)**

۱. پرتختې د تمرکز وړ توری وليکئ، د توري نوم واو او غږ *او/* معرفي کړئ.

۲. توري ته اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بيا دې زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

۳. توری په هوا کې وليکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي تاسو وګوري، بيا دې دوی په خپله توری په هواکې وليکي.

۴. زده‌کوونکي دې خپل کتاب ته وګوري او کله چې په ګډه غږ ادا کوئ، په خپلې ګوتې دې وګاري.



۵. د توري له ښارني وروسته، د توري غږ ووایاست.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست چې خپل پنسل واخلي او دغه توري د خپل تمرين په کتاب کې ۵ ځلې وليکي.

**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره** وَ، وِ وُ (حرکتونه) پر تختې وليکئ.

۱. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري(و) دی چې د *اوَ/* له حرکت سره يې غږ توپير کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

۲. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست دغه توري *او/* دی چې د *اوِ/* له حرکت سره يې غږ توپير کوي.

۳. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري *او/* دی چې د *اوُ/* له حرکت سره يې غږ توپير کوي.

٤. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره يې په ګډه غږ ووایاست.

**۲. هجا يې کړئ (۵دقيقې)**

د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين ـ وېشل او يوځای کول (ترکيب)

۱. پر تختې لومړی ترکیبي کلمه د کتاب مطابق و هاب= وهاب چې په سېلابونو وېشل شوې ده، ولیکئ.

۲. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره یوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.

۳. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې یو ځای ولولي.

٤. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

٥. دغه پړاو په دویمه او دریمه کلمه هم تر سره کړئ او-به = اوبه، اَ ول = اَول

٦. له زده کوونکو وغواړئ چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د کلمو وېش او ترکیب وکړئ.

۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۸. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.



**د اورېدلو کیسه: (۱۵ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

**د انځور او عنوان په کارولو سره د متن په اړه یوه وړاندوینه کول**

۱. له زده کوونکو سره د دریو یا څلورو نوو لغتونو په اړه بحث وکړئ، دغه لغتونه **خځلې** (کثافات)، **چټل** (ناولی، ناپاک)، **اشر** (په ګډه کار کول) دي چې باید درې ځلې يې له تاسو وروسته تکرار کړي.

۲. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې لومړی لغت (خځلې) څه معنا لري؟ د ځواب ورکولو لپاره وخت ورکړئ او وروسته د (خځلې) کلمې معنا: (په کورونو کې اضافي شیانو ته وایي چې بهر يې په ټاکلي ځای کې اچوي.) پرتختې ولیکئ.

۳. د انځور په اړه له زده کوونکو سره بحث وکړئ. هغه څه خلاصه کړئ چې زده کوونکو په انځور کې لیدلي دي.

٤. پرېږدئ چې زده کوونکي د کیسې عنوان واوري. بیا د کیسې د عنوان په اړه له هغوی سره بحث وکړئ.

٥. له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ، څه فکر کوئ چې کیسه به د څه شي په اړه وي؟ پرېږدئ ګڼ شمېر زده کوونکي ځواب ورکړي. ځواب مه ورکوئ، هغوی ته ووایاست چې واوري چې وړاندوینه يې سمه ده که نه؟

**د اورېدلو پرمهال:**

۱. کیسه ورو، ورو په مناسبه لحن، غږ بیان کړئ. په کیسه کې د پېښو په اړه له اشارو او بدني حرکتونو څخه کار واخلئ چې زده کوونکي مو وخاري چې څه پېښېږي. که چیرې اصلي کرکټر ځینې کړنې او حرکات تر سره کوي، بیا نو پرېږدئ چې زده کوونکي هم هغسې کړنې او حرکات تر سره کړي.

۲. کله چې کیسه لولئ یو یا دوه ځلې په کې ځنډ وکړئ او له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ: څه فکر کوئ چې له دې وروسته به په کیسه کې څه پېښ شي؟ یا ولې ځینې شیان پېښېږي.(*۱) په کلینک کې به ډاکټرانو ناروغانو ته څه ویلي وي؟(*۲) ملاصاحب به کلیوالو ته څه ویلي وي؟

۳. کیسه یو ځل بیا ولولئ.

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنې چې د کیسې په اړه يې وړاندوینه سمه وه که نه؟( هو/ نه)

۲. زده کوونکو ته ووایئ چې اوس د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم:

لومړی پوښتنه! ډاکټرانو څه ویلي وو؟ (ځواب: ډاکټرانو ورته وویل:چې خلک د چټلو خوړو او اوبو له کبله ناروغه شوي دي.)

دویمه پوښتنه! کلیوالو خپل کلی څنګه پاک کړ؟

ځواب :( کلیوالو اشر وکړ؟)

ذهني پوښتنه: تاسو له خپلو خلکو سره کله ګډ کار کړی دی چې د ټولو ته يې ګټه رسولې وي.

۳. پرېږدئ چې ځینې زده کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل درس څخه د ډاډ اخیستنې لپاره له خو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

- د (و) توری لیکلای شئ؟
- د (و) توری غږ ویلای شئ؟
- د (اوبه) په کلمه کې د /و/ توری په کوم ځای کې راغلی دی؟

**کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د اورېدلو کیسه د کورنۍ له غړو سره شریکه او د (و) توري څو ځلې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د (و) توري شکلونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وپېژني او و يې لیکي.
- د (و) توري حرکتونه وپېژني.
- د (و) او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو کیسې د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه: (۵ دقیقې)**

**د تمرین شوي غږ تکرار: /و/**

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ چې په تصویر کې څه شی ویني؟

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د /ونې/ د کلمې لومړی غږ /و/ دی.

۳. زده‌کوونکو ته وواياست، که چېرې کلمه د /و/ په غږ پیلېږي، خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه، لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ : ونه، وياله، وطن، لوبه، کريم، توت، اوبه او ورور.

۴. له زده‌کوونکو سره د دويم انځور په اړه بحث وکړئ چې د /لور/ کلمې منځنی غږ /و/ دی.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست، که چېرې د /و/ غږ د کلمې په منځ کې وي خپل لاسونه دې پورته او که نه، ښکته کړي. لاندې مثالونه وکاروئ: لور، مور، کور، لیمو، منه، کدو، منګی، خور.

۶. له زده‌کوونکو سره د دريم انځور په اړه بحث وکړئ چې د /الو/ د کلمې وروستی غږ /و/دی.

۷. لاندې کلمې وواياست او زده‌کوونکو ته وواياست، که چېرې د /و/ غږ د کلمې په پای کې وي خپل لاسونه دې پورته او که نه، لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: الو، لیمو، ناک، توت، ناجو، قلم . ځوکی، کدو..



**۲. د توري د نورو شکلونو او غږونو تدریس (۱۰ دقیقې)**

**د توري د نورو شکلونو او غږونو تدریس**

۱.پر تختې باندې لومړی کلمه /ونه/ ولیکئ، /ونه/ او د لومړي توري غږ / و/ معرفي کړئ.

۲.لومړي غږ ته اشاره وکړئ او زده‌کوونکو ته وواياست چې /ونه/ هغه کلمه ده چې /و/ يې په پیل کې راځي.

۳.توري ته اشاره وکړئ، له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ پرېږدئ چې لومړی يې په ګډه او وروسته يې زده‌کوونکي په خپله ووايي.

۴.په هوا کې توری ولیکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي تاسو وګوري، وروسته دې بیا هغوی په خپله تر سره کړي.

۵.زده‌کوونکي دې خپلو کتابونو ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، توری دې په خپله ګوته وګاري

او بیا دې د توري غږ ولولي.

۶.زده‌کوونکو ته ووایاست چې خپل پنسل واخلي د خپل تمرین په کتاب کې یې ۵ ځلې ولیکي.

۷. د (لور) او (آلو) کلمو په منځ او پای کې دې د تورو لپاره ورته پراوونه تعقیب کړي.

**نوی توري د (فتخې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

۱. وَ، وِ او وُ (سېلابونه) پر تختې ولیکئ.

۲. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. دغه توری *او* دی چې د (وُ) له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.

۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. دغه توری *او* دی چې د وِ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیدا کوي.

٤. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري هم *او* دی چې د وُ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیدا کوي.

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړي. هغوی ته ووایاست چې سېلابونه په جوړه یې توګه ووایي. د سېلابونو د لوستلو پرمهال هغوی باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.

٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرین کړي.

**هجا یې کړئ (۵ دقیقې)**

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین - وېش او ترکیب:**

پرتختې لومړی ترکیبي کلمه د کتاب مطابق */ وهاب/ =* وـ هاب چې په سېلابونو وېشل شوې وي، ولیکئ.

۱. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلولپاره سېلابونه سره یوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره یې ورو، ورو ولولئ.

۲. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.

۳. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

٤. دغه پړاو په دویمه او دریمه کلمه کې هم تر سره کړئ بَهـ ـلول = بَهلول او لامـ ـبو = لامبو.

۵. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په دوه کسیزه توګه کار وکړي، هر یو دې په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.

٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.

**انځوریزه کیسه (۱) (۱۵ دقیقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

**د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه کول**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې هغوی به د یوې انځوریزې کیسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.

۲. زده‌کوونکو ته عنوان ووایاست. د کیسې عنوان «ښکلې ولسوالي» ده. دا زده‌کوونکي فکر کولو ته اړ کوي چې کېدای شي کیسه به د ښکلې ولسوالۍ په اړه وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

- د لومړي تصویر جمله: کلیوالو اشر وکړ.
- د دویم تصویر جمله: یوم وایي: ما در سره واخلئ.
- د دریم تصویر جمله: نیالګی وایي ما نیال کړئ.
- د څلورم تصویر جمله: ز موږ کلی ښکلی دی.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوریزې کیسې تصویرونو ته وګوري.

۲.زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته ووایاست چې په لومړي انځور کې څه ګوري؟ ډاډ تر لاسه کړئ چې زده‌کوونکي یې په خپل کتاب کې ګوري؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووایي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګوري.

۳.د ۲، ۳او ۴ انځورونو لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴.زده‌کوونکو ته ووایاست، راځئ چې ټولو انځورونو ته یو ځل بیا وگورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توگه ووایم چې په انځور کې څه شی وینئ.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه وه که نه؟( هو یا نه)

۲.زده‌کوونکو ته ووایئ چې اوس د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم:

لومړی پوښتنه : کلیوالو څه وکړل؟ (ځواب: کلیوالو اشر وکړ).

دویمه پوښتنه: نیالگي څه ویلي وو؟(ځواب: نیالگي ویلي وو: ما نیال کړئ.)

**ذهني پوښتنه:** اشر څه گټې لري؟

۳.پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل تدریس څخه د ډاډ اخیستنې لپاره له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

- د (و) توري شکل د کلمې په منځ کې را ښودلای شئ؟
- د (و) توري حرکات په جدول کې په نښه کولای شئ؟
- د (بهلول) په کلمه کې د (و) توری څېرته موقعیت لري؟

**کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د درسي کتاب د جدول توري له حرکتونو سره د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### د زده‌کړې موخې

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د (د) توري شکل، نوم او غږ به وپېژني او و به يې ليکي.
- د (د) توري حرکتونه وپېژني.
- له (د) او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
- د لوستلو کيسې د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه او نظر ورکړي.
- د (د) او نورو لوستل شوو تورو څخه کلمې جوړې او وليکي.

**د لوست پيل: (۵ دقيقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه(۵ دقيقې)**

**د تمرين شوي غږ تکرار: /د/**

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ چې په تصوير کې څه شی وينئ؟

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې د /دروازې/ کلمې لومړی غږ / دَ / دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووايئاست، که چېرې کلمه د /د/ په نوي غږ پيلېږي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه، لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: دروازه، دوا، درمل، انګور، کېله، بادام،دوست، کتاب.

**د تورو او کلمو لوستل(۱۰ دقيقې)**

۱. پرتختې د تمرکز وړ توری وليکئ، د توري نوم دال او غږ / دَ / معرفي کړئ

۲. توري ته اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بيا دې يوازې زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

۳. توري په هوا کې وليکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي



تاسو وګاري، بيا دې دوی په خپله تر سره کړي.

۴. زده‌کوونکي دې خپل کتاب ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، په خپلې ګوتې دې وګاري.

۵. د توري د ګارنې له بشپړېدو وروسته، د توري غږ ووايئاست.

۶. زده‌کوونکو ته ووايئاست چې خپل پنسل واخلي او دغه توری دې د خپل تمرين په کتابچه کې ۵ ځلې وليکي.

**نوی توری د (فتحې، کسرې او ضمې) له حرکت سره**

د (د) د توري حرکتونه(سېلاب) پر تختې باندې وليکئ.

۱. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووايئاست چې دغه توری دَ دی چې د دَ له حرکت سره يې غږ بدلېږي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووايئاست.

۲. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووايئاست دغه توری (د) دی چې د دِ له حرکت سره يې غږ بدلېږي.

۳. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری دِ دی چې د دُ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکوي.

٤. زده‌کوونکو ته ووایاست، په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړي. هغوی ته ووایاست چې سېلابونه په جوړه یې توګه ووایي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال هغوی باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.

۵. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

٦. زده‌کوونکو ته ووایاست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرین کړي.

### هجا يې کړئ (۵ دقیقې)

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین - وېش او ترکیب**

پر تختې باندې لومړی ترکیبي کلمه د کتاب مطابق دَ وا = دَوا چې په سېلابونو وېشل شوې وي، ولیکئ.

۱. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره یوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره یې ورو، ورو ولولئ.

۲. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.

۳. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

٤. دغه مرحله په دویمه او دریمه کلمه کې هم تر سره کړئ دا دا = دادا او دا وود = داوود.

۵. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په جوړه یې توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.

٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

### انځوریزه کیسه(۱)(۱۵ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

**د انځورونو او عنوان په کارولو سره د متن په اړه وړاندوینه:**

۱.له زده‌کوونکو سره د نویو لغتونو په اړه بحث وکړئ، دغه لغتونه اشر، یوم، نیال کول دي.

۱. د انځور په اړه له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ او هغه څه خلاصه کړئ چې زده‌کوونکو په انځور کې لیدلي دي.

۲. زده‌کوونکو ته د کیسې عنوان ووایئ. بیا د کیسې د عنوان په اړه له هغوی سره بحث وکړئ.

۳. له زده‌کوونکو څخه پوښتنه وکړئ، څه فکر کوئ چې کیسه به د څه شي په اړه وي؟ پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي. ځواب مه ورکوئ، هغوی ته ووایاست چې کیسه وګوري چې د هغوی وړاندوینه سمه وه که نه؟

**له لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکي دې خپل کتاب ته وګوري او دلته ته دې هغې انځوریزې کیسې ته وګوري چې پرون یې لوستلې وه.

۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې په خپل کتاب کې د انځوریزو کیسو انځورونو ته وګوري.

۲. هغوی ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي انځور ته اشاري وکړي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ګوري په اړه یې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووایي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګوري.

۳. هغوی ته ووایاست چې خپلو ملګرو یا ټولګیوالو ته د ۲، ۳ او ۴ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ګوري.

۴. زده‌کوونکو ته ووایاست چې انځوریزه کیسه خپلو

ټولګيوالو ته ووايي، ډاډ تر لاسه کړئ، کله چې دغه فعاليت سرته رسېږي بايد ټول زده‌کوونکي انځورونو ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې زه به له هغوی څخه د کيسې په اړه ځينې پوښتنې وکړم.

لومړۍ پوښتنه: کليوالو څه وکړل؟ ځواب: کليوالو اشر وکړ.

دويمه پوښتنه: يوم څه ويلي وو؟ ځواب: يوم ويلي وو: ما در سره واخلئ.

ذهني پوښتنه: اشر څه اهميت او ارزښت لري؟

۳.پرېږدئ چې ځينې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ووایاست چې هغوی څه فکر کوي. تل پوښتنه وکړئ چې ولې داسې فکر کوي؟

 **ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل تدريس څخه د ډاډ اخيستنې لپاره له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

- د (د) توري غږ ويلای شئ؟
- د (د) توري ليکلای شئ؟
- د درسي کتاب په جدول کې د /د/ حرکتونه ويلای شئ؟

**کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د درسي کتاب د وروستي جدول توري او کلمې د تمرين په کتاب کې څو ځلې وليکي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د (د) توري شکلونه د کلمو په پیل، منځ او پای کې وپېژني او وې لیکي.
- د (د) توري حرکتونه وپېژني.
- له (د) او نورو لوستل شوو تورو څخه جوړې شوې کلمې ووایي او ترکیب کړي.
- د لوستلو دویمې انځوریزې کیسې په اړه پوښتنو ته ځواب او نظر ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ.

**غږ پېژندنه (۵ دقیقې)**

**د تمرین شوي غږ تکرار: /د/**

۱. له زده‌کوونکو سره د لومړي انځور په اړه بحث وکړئ.

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د /دروازې/ کلمې لومړی غږ / د/ دی.

۳. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې کلمه د /د/ په غږ پیلېږي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه، په خپل عادي حالت دې پاتې شي. لاندې مثالونه وکاروئ: دروازه، درمل، هېواد، ډوډۍ، منه، داستان، دادا.

٤. له زده‌کوونکو سره د دویم انځور په اړه بحث وکړئ

۵. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د / کدو/ کلمې منځنی غږ /د/ دی.

٦. لاندې کلمې ووایئ او زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې نوی غږ د کلمې په منځ کې وي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه، لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ: کدو، خوند، کېله، ناجو، مدینه، مدیر، دنده.

۷. له زده‌کوونکو سره د دویم انځور په اړه بحث وکړئ

۸. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د /درمند/ کلمې



وروستی غږ / د/ دی.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست، که چیرې نوی غږ د کلمې په پای کې وي خپل لاسونه دې پورته کړي او که نه لاسونه دې نه پورته کوي. لاندې مثالونه وکاروئ : درمند، پیوند، مړوند، کور، ډوډۍ، لوند، ورور،

**د توري د نورو شکلونو تدریس (۱۰ دقیقې)**

۱.پر تختې باندې لومړی کلمه (دروازه) ولیکئ او د توري غږ / د/ معرفي کړئ.

۲.لومړي غږ ته اشاره وکړئ او زده‌کوونکو ته ووایاست چې دا هغه کلمه ده چې /د/ یې په پیل کې راغلی.

۳.توري ته اشاره وکړئ، له زده‌کوونکو څخه د توري د غږ په اړه پوښتنه وکړئ لومړی په ګډه او بیا دې یوازې زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

۴.په هوا کې توری ولیکئ او پرېږدئ چې زده‌کوونکي تاسو وګوري، وروسته دې بیا هغوی په خپله تر سره کړي.

۵.زده‌کوونکې دې خپلو کتابونو ته اشاره وکړي او کله چې په ګډه غږ ادا کوي، توري دې په خپله ګوته وښاري.
۶.د توري له ښارلو وروسته، د توري غږ وواياست.
۷.زده‌کوونکو ته وواياست چې خپل پنسل واخلي د خپل تمرين په کتاب کې يې ۵ ځلې وليکي.
۸. د کلمې په منځ او پای کې د تورو لپاره ورته مرحله تعقيب کړئ.

**نوي توري د (فتحې، کسرې اوضمې له حرکت) سره**

١. د دَ، دِ، دُ سېلابونه پر تختې باندې وليکئ.
٢. لومړي سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری /د/ دی چې د (دَ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.
٣. دويم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست دغه توری /د/ دی. چې د (دِ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيداکوي.
٤. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری د دی چې د (دُ) له حرکت سره يې سېلاب توپير پيداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.
٥. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه غږ وواياست.
٦. زده‌کوونکو ته وواياست، په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي. هغوی ته وواياست چې سېلابونه په جوړه يي توګه ووايي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال هغوی بايد په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.
٧. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
٨. زده‌کوونکو ته وواياست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

**هجا يې کړئ (۵ دقيقې)**

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين ـ وېش او ترکيب**

١. پر تختې لومړۍ ترکيبي د کتاب مطابق دَوا = دَ وا چې په سېلابونو وېشل شوې وي وليکئ.
٢. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره يوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.
٣. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځای ولولي.
٤. د سېلابونو په يو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.
٥. دغه مرحله په دويمه او دريمه کلمه هم تر سره کړئ: واده = وا ده، بَلَد = بَ لد.
٦. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په جوړه يي توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړي.
٧. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
٨. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

**انځوريزه کيسه(٢) (١۵ دقيقې)**

**له لوستلو څخه مخکې**

**د عنوان او انځورونو په کارولو سره د متن په اړه وړاندوينه کول:**

١.زده‌کوونکو ته وواياست چې هغوی به د انځوريزې کيسې د لوستلو لپاره چمتو واوسي.
٢.زده‌کوونکو ته عنوان وواياست. د کيسې عنوان پاک چاپېريال دی. دا موږ فکر ته اړ کوي چې کېدای شي کيسه به د پاک چاپېريال وي، له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې له تاسو سره موافق دي که نه؟

- د لومړي تصوير جمله: د کلي هوا تازه او پاکه ده.
- د دويم تصوير جمله: ونې هوا صفا کوي.
- د دريم تصوير جمله: ز موږ ښار پاک او صفا دی.
- د څلورم تصوير جمله: زموږ هېواد افغانستان دی.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکي دې په خپلو کتابونو کې د انځوریزې کیسې تصویرونو ته وګوري.

۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې لومړی انځور ته اشاره وکړي، هغوی ته وواياست چې په لومړي انځور کې څه ګوري. ډاډ تر لاسه کړئ. زده‌کوونکي یې په کتاب کې ګوري. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووايي چې په انځور کې څه ګوري؟ کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي، د هغه څه لنډيز وړاندې کړئ چې په انځور کې يې ګوري.

۳.د ۲، ۳ او ۴ انځور لپاره دويم پړاو تکرار کړئ.

۴.زده‌کوونکو ته وواياست، راځئ چې ټولو انځورونو ته يو ځل بيا وګورو او اجازه راکړئ تاسو ته په لنډه توګه ووايم چې په انځور کې څه پېښېږي.

**له لوستلو وروسته**

۱.له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه وه که نه؟ ( هو/ نه)

۲.زده‌کوونکو ته وواياست چې اوس د کيسې په اړه ځينې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: د کلي هوا ښکه وي؟ له زده‌کوونکو وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته وواياست چې (ځواب له خپل ملګري سره شريک کړي.)

له هغه وروسته له يوې جوړې زده‌کوونکو ( دوه ملګري زده‌کوونکي) څخه وغواړئ چې له ټولګيوالو سره ځواب شريک کړي. وروسته بيا سم ځواب ورکړئ (ځواب: د کلي هوا تازه او پاکه وي.)

۴.دويمه پوښتنه: د ونو ګټه څه ده؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شريک کړي. وروسته بيا خپل ځواب له ټولګيوالو سره شريک کړئ. ځواب (ونې هوا صفا کوي).

۵. ذهني پوښتنه: کليوال بايد کوم کارونه وکړي چې خپل کلي پاک او صفا وساتي؟ زده‌کوونکو ته وواياست، څوک په ځواب پوهېږي. پرېږدئ چې يو شمېر زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته وواياست چې هغوی څه فکر کوي. په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پيل وکړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

ارزونه: ښوونکی دې له خپل تدريس څخه د ډاډ اخيستنې لپاره له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

- د (د) توري شکل د کلمې په منځ او پای کې ښووﻻی شئ؟
- د (د) د توري حرکتونه ويلای شئ؟
- د (بلد) په کلمه کې د (د) توری چېرته موقعيت لري؟

کورنۍ دنده: زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دويمه انځوريزه کيسه دې د کورنۍ له غړو سره شريکه کړي او توري او کلمې دې د تمرين به کتاب کې وليکي.

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (و) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د (و) توری په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکې وکولای شي چې:

- د کلمو په پیل، منځ او پای کې (و) او (د) توري تکرار کړي.
- د (و) او (د) توري حرکتونه تکرار کړي.
- له (و) او (د) او نورو لوستل شوو تورو څخه د جوړو شوو کلمو ویش او ترکیب وکړي.
- د لوستلو کیسود انځورونو په اړه خپله کیسه جوړه کړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه(۵دقیقې)**

**د نویو غږونو او تورو بیا کتنه**

۱. په خپل کتاب کې لومړي انځور ته وګورئ. په انځورکې څه شی وینئ؟ (پربږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکې ځواب ورکړي)

۲. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (ونې او دروازې) کلمو لومړي غږونه /و، د/ دي.

۳. زده‌کوونکو ته وواياست چې دویم انځور ته وګوري. په انځورکې څه شی ویني؟

٤. زده‌کوونکو ته ووایئ چې د (لوري او کدو) کلمو منځنې غږونه (و، د) دي.

۵. زده‌کوونکو ته وواياست چې دریم انځور ته وګوري. په انځورکې څه شی وینئ؟

٦. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د (آلو او درمند) کلمو د پای غږونه (و او د) دي.

**د تورو او غږونو د نورو شکلونو بیا تکرار(۱۰دقیقې)**

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې کلیدي انځور ته نږدې د



تورو د غږ استازیتوب کوي.

۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې باندې ولیکئ.

۳. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ یې /و/ او /د/ ووايئ.

٤. زده‌کوونکو ته وواياست کله چې په ګډه غږ ادا کوي، هغه توري په خپله ګوته وخاري.

۵. د توري له خارلو وروسته، غږ ووایاست.

٦. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په پای کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې باندې ولیکئ.

۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ یې /و/ او /د/ ووايي.

۸. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي توري په خپله ګوته وخاري.

۹. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د توري ټولو درې واړو شکلونو ته یو په یو اشاره وکړي او کله چې اشاره کوي، غږ دې هم ووایي.

**د نوو تورو (فتحې، کسرې او ضمې) حرکتونو بیا کتنه:**

۱. وَ دِ وُ سېلابونه پر تختې باندې ولیکئ .
۲. لومړی سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری و دی چې د (وَ) له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ ووایاست.
۳. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست دغه توري د دی چې د (دِ) له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیداکړئ.
٤. دریم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توري و دی چې د وُ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیدا کوي.
۵. سېلابونو ته یو په یو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه غږ ووایاست.
٦. زده‌کوونکو ته ووایاست: په خپل کتاب کې سېلابونه پیدا کړئ. سېلابونه په جوړه یې توګه ووایئ. د سېلابونو د لوستلو پر مهال هغوی باید په خپله ګوته باندې سېلابونه وښاري.
۷. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.
۸. زده‌کوونکو ته ووایاست، د کلمو لوستل په کور کې تمرین کړي.



**هجا یې کړئ (۵ دقیقې)**

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرین - وېش او ترکیب**

پر تختې لومړۍ ترکیبي کلمه د کتاب مطابق دَ وا = دَوا چې په سېلابونو وېشل شوې وي، ولیکئ.

۱. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره یوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره یې ورو، ورو ولولئ.
۲. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای ولولي.
۳. د سېلابونو په یو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.
٤. دغه پړاو په دویمه او دریمه کلمه هم تر سره کړئ
وُ دود = وُدود او بَـ لد = بلد
۵. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په جوړه ییزه توګه کار وکړي، هر یو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکیب وکړي.
٦. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري او اصلاحي نظر ورکړئ.
۷. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د لغتونو لوستل په کور کې تمرین کړي.



**د انځوریزې کیسې بیا لوستل(۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده‌کوونکې دې په خپل کتاب کې د انځوریزې کیسې تصویرونو ته وګوري.
۲. هغوی ته یو ځل بیا عنوان ووایاست او ورځخه پوښتنه وکړئ چې کیسه د څه شي په اړه وه؟ پرېږدئ چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده‌کوونکو ته ووایاست چې لومړي انځور ته وګوري، ډاډ تر لاسه کړئ چې ټول زده‌کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره وکړي. هغه څه چې هغوی یې په انځور کې ګوري په اړه یې ورسره بحث وکړئ. پرېږدئ چې زده‌کوونکي ځواب ورکړي او ووایي چې په انځور کې څه ګوري. کله چې ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکوي،د هغه څه لنډیز وړاندې کړئ چې په انځور کې یې ګوري.
۲.هغوی ته ووایاست چې خپلو ملګرو / ټولګیوالو ته د ۲، ۳ او ۴ انځور په اړه ووایي چې دلته څه ګوري؟
۳.زده‌کوونکو ته ووایاست چې انځوریزه کیسه خپلو

ټولګیوالو ته ووایي، ډاډ تر لاسه کړئ چې د فعالیت د سرته رسولو پرمهال ټول زده‌کوونکي ټاکلي انځور ته اشاره وکړي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه وه که نه؟ ( هو/ نه)

۲. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کیسې په اړه ځینې پوښتنې کوم.

۳. لومړۍ پوښتنه: زموږ هېواد څه نومېږي؟ له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د ځواب د پوهېدو په صورت کې خپل لاسونه پورته کړي. هغوی ته ووایاست چې ځواب له خپل ملګري سره شریک کړي.

له هغه وروسته له یوې جوړې زده‌کوونکو وغواړئ چې له ټولګي سره ځواب شریک کړي. (ځواب: زموږ هېواد افغانستان نومېږي).

۴. دویمه پوښتنه: په دریم تصویر کې ښار څنګه دی؟ زده‌کوونکو ته ووایاست، ځوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې زده‌کوونکي خپل لاسونه پورته کړي. له دوو یا دریو زده‌کوونکو وغواړئ چې خپل ځوابونه شریک کړي. وروسته بیا خپل ځواب له ټولګیوالو سره شریک کړئ. ځواب (ښار پاک او صفا دی).

۵. ذهني پوښتنه: څه باید وکړو چې ښار مو پاک او صفا وي؟ زده‌کوونکو ته ووایاست، ځوک په ځواب پوهېږي؟ پرېږدئ چې ځینې زده‌کوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړي او ورته ووایاست چې هغوی څه فکر کوي؟ په دې پړاو کې ضروري نه ده چې ټول ځوابونه دې سم وي. دا ډېره مهمه ده چې زده‌کوونکي په فکر کولو پیل وکړي.

**نوښتي لیکل (۵ دقیقې)**



۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.

۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.

۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه چې یې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.

٤. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه خپله کیسه درته وکړم. زموږ په کلي کې یوه وړه نجلۍ وه. کورنۍ یې دومره وس نه درلود چې هغه ښوونځي ته ولېږي بیا خلکو پرېکړه وکړه چې ټول ماشومان باید لیک او لوست زده کړي. کلیوالو له هغوی سره مرسته وکړه چا ورته د مکتب کالي واخیستل، چا ورته بکس واخیست او بل ورته کتابچې واخیستې نو بیا هغه ښوونځي ته ولاړه. اوس هغه ښوونکې ده. څرنګه چې د ټولنې خلکو له هغې سره په زده کړه کې مرسته کړې وه، اوس دا هم له ماشومانو سره په درسونو کې ډېره مرسته کوي او د خپلې ټولنې د مرستې بدله ورکوي.

۵. زده کوونکو ته ووایاست چې له ټولنې سره د مرستې په باره کې دې خپلو څنګ لوریو زده کوونکو ته یوه کیسه ووایي.

٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل درس څخه د ډاډ اخیستنې لپاره له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.

- د (و) توري شکل د کلمو په منځ او پای کې ښودلای شئ؟
- د (د) توري شکل د کلمې په پای کې لیکلای شئ؟
- پاک چاپېریال څه ګټې لري؟

**کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په کور کې د تصویرونو په هکله فکر وکړي او په خپله خوښه دې یو بل تصویر رسم کړي.

**د زده‌کړې موخې**

د دې لوست په پای کې به زده‌کوونکي وکولای شي چې:

- د کلمو په پیل، منځ او پای کې د (ب) او (م) توري تکرار کړي.
- د (ب)، (م) (د) او (و) تورو حرکتونه تکرار کړي.
- د کلمو وېش او ترکیب وکړي.
- له لوستل شوو تورو څخه جوړې شوې کلمې ولولي او ویې لیکي.
- د لوستلو د دویمې کیسې د انځورونو په اړه پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**د لوست پیل: (۵ دقیقې)**

سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او انګېزوي پوښتنې وکړئ..

**غږ پېژندنه(۳دقیقې)**

**د نویو غږونو او تورو بیا کتنه**

۱. په خپل کتاب کې لومړی انځور ته وګورئ. په انځورکې څه شئ وینئ؟
۲. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د /بوټ او منې/ کلمو د پیل غږونه /بـ او مـ دي.
۳. زده‌کوونکو ته وواياست چې دویم انځور ته وګوري. په انځورکې څه شئ ویني؟
۴. زده‌کوونکو ته ووایئ چې د /کباب او لیمو / کلمو د منځ غږونه/ ـبـ/ او / ـمـ /دي.
۵. زده‌کوونکو ته وواياست: دریم انځور ته وګورئ. په انځورکې څه شئ ویني؟
۶. زده‌کوونکو ته ووایئ چې د /کب او قلم/ کلمو وروستي غږونه / ـب/ او / ـم/ دي.

**د توري او غږونو د نورو شکلونو بیا تکرار (۷ دقیقې)**

۱. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې هغو تورو ته اشاره وکړي چې کلیدي انځور ته نږدې د تورو د غږ استازیتوب کوي. له زده‌کوونکو سره په ګډه د سېلاب غږ وواياست.
۲. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په منځ کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې ولیکئ.
۳. له زده‌کوونکو وغواړئ چې د خپل کتاب په متن کې



د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ یې / ـبـ /، / ـمـ/ ووايئ.
۴. زده‌کوونکو ته وواياست، کله چې په ګډه غږ ادا کوي، هغه توري په خپله ګوته باندې وښاري.
۵. د توري له څارلو وروسته، غږ وواياست.
۶. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توري د کلمې په وروستۍ برخه کې بل شکل لري. دغه شکل پر تختې باندې ولیکئ.
۷. له زده‌کوونکو وغواړئ چې په خپل کتاب کې د توري شکل ته اشاره وکړي او غږ یې / ـب /، / ـم/ ووایي.
۸. زده‌کوونکو ته وواياست چې د توري ټولو دریو واړو شکلونو ته یو په یو اشاره وکړي او کله چې اشاره کوي غږ دې هم ووایي.

**د نوو تورو (فتحې، کسرې او ضمې) حرکتونو بیا کتنه**

وَ ، دِ ، وُ او دَ سېلابونه پر تختې باندې ولیکئ.

۱. لومړی سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست چې دغه توری /و/ دی چې د وَ له حرکت سره یې سېلاب توپیر پیدا کوي.
۲. دویم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته وواياست دغه توري /د/ دی چې د دِ له حرکت سره یې سېلاب

توپير پيدا کوي.

۳. دريم سېلاب ته اشاره وکړئ. زده‌کوونکو ته ووایاست چې دغه توری /و/ دی چې د وُ له حرکت سره يې سېلاب توپير کوي. همداشان د /دَ/ حرکت لپاره ورته فعاليت ترسره کړئ.

۴. سېلابونو ته يو په يو اشاره وکړئ او له زده‌کوونکو سره په ګډه غږ ووایاست.

۵. زده‌کوونکي دې په خپل کتاب کې سېلابونه پيدا کړي. هغوی ته ووایاست چې سېلابونه په جوړه ييزه توګه ووايي. د سېلابونو د لوستلو پر مهال هغوی باید په خپله ګوته باندې سېلابونو ته اشاره وکړي.

۶. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست، د تورو حرکتونه په کور کې تمرين کړي.

## هجا يې کړئ (۵ دقيقې)

**د سېلاب لرونکو کلمو د لوستلو تمرين- وېش او ترکيب:**

پر تختې لومړی ترکيبي کلمه د کتاب مطابق بابا = با با چې په سېلابونو وېشل شوې وي، وليکئ.

۱. مخکې له دې چې هغوی د کلمو د لوستلو لپاره سېلابونه سره يوځای کړي، د سېلابونو په کارولو سره يې ورو، ورو ولولئ.

۲. په داسې حال کې چې تاسو خپله ګوته د هر سېلاب لاندې تېروئ، له زده‌کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې يو ځای ولولي.

۳. د سېلابونو په يو ځای کولو سره، کلمه په ارامه توګه، په ګډه تکرار کړئ.

۴. دغه پړاو په دويمه او دريمه کلمه هم تر سره کړئ
ماما = ما ما او بمبه= بم- به.

۵. له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په جوړه ييزه توګه کار وکړي، هر يو په نوبت سره په خپلو کتابونو کې د راغلو کلمو وېش او ترکيب وکړي.

۶. په ټولګي کې وګرځئ، له هغو زده‌کوونکو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري.

۷. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کلمو لوستل په کور کې تمرين کړي.

## انځوريزه کيسه (۲) (۱۵دقيقې)

**د لوستلو څخه مخکې**

۱. زده‌کوونکي دې په خپل کتاب کې د انځوريزې کيسې تصويرونو ته وګوري.

۲. هغوی ته يو ځل بيا عنوان ووایاست او ورڅخه پوښتنه وکړئ چې کيسه د څه شي په اړه وه؟ پرېږدئ ګڼ شمېر زده‌کوونکي ځواب ورکړي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې کيسه دې د خپل څنګ ملګري ته ووايي.

۲. له لنډ مهال وروسته، هغوی ته ووایاست چې ملګری بدل کړي او بيا خپل بل ملګري ته کيسه ووايي.

۳. له دوو يا دريو زده‌کوونکو وغواړئ چې کيسه ټولګي ته ووايي.

## املا (۵ دقيقې)

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د تمرين په کتابونو کې نوي توري او کلمې وليکي.

۲. ووایاست، لومړی توری (ب) دی او پرېږدئ چې زده‌کوونکي لومړی نوی توری په هوا کې وليکي، وروسته يې د تمرين په کتابونو کې وليکي. کله چې هغوی توری ليکي، پرېږدئ چې غږ يې ووايي.

۳. ورته کار د (م، و، دوا، دادا، داوود، بادام، بلد) لپاره هم ترسره کړئ.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

**ارزونه:** ښوونکی دې له خپل تدريس د داړ اخيستنې لپاره له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

- د (ب) توري شکل د کلمې په پای کې راښودلای شئ؟
- د (م) توری شکل د کلمې په منځ کې راښودلای شئ؟
- د (ماما)په کلمه کې د (م) توری په کوم ځای کې راغلی دی؟

**کورنۍ دنده:** زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د دې لوست توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

## د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

زده کوونکي دې د (د) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(د) توری په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**شپږمه اونۍ موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** مرسته **توري:** آ، س

## د اونۍ د زده‌کړې موخې

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د (آ) او (س) غږونو اورېدل.
٢. د (آ) او (س) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ٩٥٪ دی)
٣. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ٨٠٪ دی)
٥. د (مرسته، پلته، شوم، آلو او آس) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ٨٠٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. زده کوونکي د (آ، س) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې د دوی عکس العمل پر نورو ښه یا بد اثر کولی شي.

## د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- کلمې و لیکئ او ویې لولئ، زده کوونکي دې هغه و ګوري او غوږ دې ورته نیسي، بیا دې زده کوونکي هغه کلمې و لیکي او و لولي.
- هره ورځ د ترکیب او تجزیې د چوکاټ لومړۍ کلمه د لاسونو په حرکت ترکیب او تجزیه کړي، د نورو کلمو تمرین دې زده کوونکي تر سره کړي، د اړتیا په صورت کې ور مرسته وکړئ.
- هغو زده کوونکو ته چې په کیڼ لاس لیکنه کوي، د قلم، کاغذ نیولو او د تورو لیکلو په اړه لازمې لارښوونې وکړئ.
- زده کوونکي و هڅوئ چې انځور رسم کړي او په هکله یې څو کلمې یا یوه جمله ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په دې وپوهوي چې د دوی هر عکس العمل پر نورو ښه یا بد اثر کوي.

- **د درس پیل (٥ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایئ.

## د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

### مرسته

آدم خان د آزادخان کره ورغی چې پیسې ځنې پور کړي. د شپې چې آصف د څراغ **پلته** په لرګي پورته کړه، پلار یې وویل: په سیم به دې جګه کړې وای، لرګي درنه ټول تېل کش کړل. د آدم خان په زړه کې ور تېر شول* چې دا خو ډېر **شوم** او سخت سړی دی. پیسې به ور څخه نه غواړم.



سهار چې آدم خان رخصتېده، آزاد خان ورته وویل: خیر خو و. څنګه راغلی وې؟ آدم خان وویل: راغلی خو په پیسو پسې وم. خو ته چې په یوه ځاځکي تېلو خپه شوې، زه غلی شوم.
آزاد خان په خندا وویل**: له یو بل سره به **مرسته** خود کوو. پیسې درکوم، خو موږ او تاسو باید هېڅ شی بې ځایه ونه لګوو.

**موضوع:** ټولنه **توری:** آ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د آ غږ اورېدل.
۲. د آ توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. غږ پېژندنه (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (آس، آلو، قلم، آزار، آباد، اوبه) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني(شکلي) کلمه: (**دی**، ) تدریس کړئ.

### ۳. د اورېدلو کیسه (۱۳ دقیقې)

#### تر اورېدلو د مخه

۱. د **پلټه**(د څراغ پلټه) **مرسته**(کومک)،شوم (بخیل) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




#### د اورېدلو پر مهال

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*.تاسې څه فکر کوئ چې د آدم خان په زړه کې به څه تېر شوي وي؟
**. تاسې څه فکر کوئ چې آزادخان به څه ویلي وي؟

#### له اورېدلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: آدم خان د چا کور ته ورغلی و؟
ځواب: د آزادخان کورته ورغلی و.
۳. پوښتنه: پلار آصف ته ولې په غصه شو؟
ځواب: ځکه چې آصف د څراغ پلټه په لرګي جګه کړه.
٤. پوښتنه: شوم څه ته وایی؟
ځواب: شوم هغه چاته وایی چې ډېر سخت او بخیل وي.
۵. ذهني پوښتنه: د ضایع شویو تېلو په اړه د آزاد خان عکس العمل پر آدم خان څه ډول اثر وکړ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** آلو **توری:** آ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د(آ) غږ اورېدل.
۲. د(آ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د-۴- کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. غږ پېژندنه (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای: په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (آس) دویم انځور (بادام)
درېیم انځور (بابا)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **آلو** (یو ډول مېوه ده)، **بلال** (نوم دی) او **بابا** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: بلال د چا بابا دی؟
ځواب: بلال د هلال بابا دی.
۳. پوښتنه: په دویمه جمله کې څه شی یاد شوی دی؟
ځواب: آلوبالو یاد شوی دی.
٤. پوښتنه: بابا چا ته ویل کېږي؟
ځواب: د مور او پلار، پلار ته ویل کېږي.
۵. ذهني پوښتنه: بابا یې له هلال سره څه مرسته کولی شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ

**موضوع:** آلو  **توری:** س

### د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د / **س** / غږ پېژندل.
۲. د **س** توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. غږ پېژندنه (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (سړک، ثواب، سابه او مسواک) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوه لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني(شکلي) کلمه: (**لري**) تدریس کړئ.

### ۳. د لومړی متن بیا لوستل (۱۳دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (آلو، بلال، بابا) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: په دویمه جمله کې د څه شي یاد شوی دی؟
ځواب: آلوبالو
۳. پوښتنه: د هلال بابا څوک دی؟
ځواب: د هلال بابا بلال دی؟
۴. ذهني پوښتنه: که تاسې د آلو باغ ولرئ، له خپل ګاونډي سره به څه مرسته وکړئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ

**موضوع:** آس **توری:** س

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **س/** غږ پېژندل.
۲. د **س** توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. غږ پېژندنه (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې ونښئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای: په هوا کې یې ولیکئ، په گوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(سړک) دویم انځور (پسته )دریم انځور (کمیس )

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوه کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عینی (شکلي) کلمه (یو) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **آس** ( یو حیوان دی)، **ماما**( د مور ورور) او **لري** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په گډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**




۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک آس لري؟
ځواب: ماما آس لري.
۳. پوښتنه: په کیسه کې آس د چا و؟
ځواب: په کیسه کې آس د ماما و.
۴. ذهني پوښتنه: تاسو له خپل تره یا ماما سره څه مرسته کولی شئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې دې ۳ ځلې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (آ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دی له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(آ) توری په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع:** آس    **توري:** آ،س

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ آ/ او/ س/ غږونو اوریدل.
٢. د (آ) او (س) تورو لوستل او لیکل.
٣. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ٨٠٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**١. غږ پېژندنه (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
٢. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږ یې لولي.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري ځارل او لیکل.

**٢. د خانه خالي جملو لوستل (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جمله پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
٣. ځوابونه: ١.آلو، ٢.دی ، ٣.لري، ٤. دی.

**٣. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

١.زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
٢. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



**٤. نوښتي لیکل (١٠دقیقې)**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
٢. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
٣. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به د هغه وخت په اړه فکر وکړو چې زما د یوه کار په سبب زما یو دوست داسې څه کړي وو چې ما یې تمه نه درلوده. بیا په همدې اړه پر تختې یو رسم وکاږئ او زده کوونکو ته ووایاست چې څه مو رسم کړي دي.
٥. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې هم همداسې خاطره وریاده کړي. داسې وخت چې دوی یو څه کړي دي او د دې کار په سبب یې چا داسې عکس العمل ښودلی وي چې دوی یې تمه نه درلوده. بیا دې د همدې خاطرې په اړه یو رسم وکاږي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

١. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ٣ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ — توري: و، د

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د او/ او/د/ غږونو پېژندل.
۲. د (و-ذ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. پېژندنه (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د توري ځارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ د سر دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې توري او کلمې لیکي.
۲. وواياست، لومړی توری *اس/ا* دی او پرېږدئ چې زده کوونکي لومړی نوی توری په هوا کې ولیکي، وروسته له هغه یې د تمرین په کتابونو کې ولیکي. کله چې هغوی توری لیکي، پرېږدئ چې غږ یې ووايي.
۳. هغوی ته وواياست چې د **الماس** کلمه ولولي او هجاوې یې د



لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **الـ ـماس**. دا کلمه **۲** هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې د تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **هوس، اودس، لباس، بابا، بلال، هلال، آلو**
۴. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، په ټولگي کې وگرځئ او زده کوونکي وځارئ.
۵. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکي د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٦. بیا د زده کوونکو کتابچې راوغواړئ او وگورئ چې دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا همدغه زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (س) توری بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(س) توری په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**اوومه (د تکرار اونۍ) موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** سپما، **توري:** ا،ل، ب، م، و، د،آ،س

### د اونۍ د زده کړې موخې

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د (هـ، ل، ب، م، و، د، آ، س) غږونو اورېدل.
٢. د (هـ، ل، ب، م، و، د، آ، س) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ٩٥٪ دی)
٣. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ٨٠٪ دی)
٥. د (**کندو، سپما، هڅه، لوی، اودس، ماما**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ٨٠٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. زده کوونکي د (ا،ل، ب، م، و، د، آ، س) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې د خپلو کارونو لپاره ښتګه پلان جوړ کړي.

### د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- کلمې ولیکئ او ویې لولئ، زده کوونکي دې هغه و ګوري او غوږ دې ورته ونیسي، بیا دې زده کوونکي هغه کلمې و لیکي او و لولي.
- هره ورځ د ترکیب او تجزیې د چوکات لومړۍ کلمه د لاسونو په حرکت ترکیب او تجزیه کړئ، د نورو کلمو تمرین دې زده کوونکي تر سره کړي، د اړتیا په صورت کې ور مرسته وکړئ.
- هغو شاګردانو ته چې په کیڼ لاس لیکنه کوي، د قلم، کاغذ نیولو او د تورو لیکلو په اړه لازمې لارښوونې وکړئ.
- زده کوونکي و هڅوئ چې انځور رسم کړي او په هکله یې څو کلمې یا یوه جمله ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په دې وپوهوي چې د خپلو کارونو لپاره پلان جوړ کړي.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلی) کلمې:** د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکئ، په زده کوونکو یې تکرار کړئ چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایئ.

### د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

#### سپما

مېږي به له مور سره کور ته غلې دانې راوړې. مور به یې یو څه له بچي سره خوړې او څه به یې په **کندو** کې **سپما** کولې.



مېږي به ویل*: په کندو کې یې څه ته اچوو؟ ولې یې خورو نه؟ مور یې ویل: نه زویه، وخت به یې راورسېږي.

بله ورځ مېږی کندو ته ورګېده چې دانې وخوري. لاندې را وغورځېده. بیا یې د ورختلو **هڅه** وکړه، بیا راوغورځېده. دریم ځل یې دانې ولیدې او خوشحاله شو.

ژمی راغی. ځمکه په واورو پټه شوه. مېږي له لوږې ژړل. مور یې له کندو څخه خواړه راواخیستل. په خندا یې وویل*: زویه! دا مې همدې ورځې ته ساتلي وو.

**موضوع:** سپما **توري:** هـ، ل

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /هـ/-/ل/ غږونو اورېدل.
۲. د (**هـ، ل**) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**هګۍ، لور، هیلی، کتابچه، هندوانه، دروازه،، مېز، لوستل، سرک، لمر**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. داورېدلوفعالیت(۱۳ دقیقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **هګه**(کوښښ)، **کندو** (د غلودانو د زېرمه کولو لوښي)، **سپما**( زېرمه کول) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*.ستاسو په نظر مېږي به څه ویلي وي؟
**. څه فکر کوئ چې مور به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: مېږي به له مور سره کور ته څه راوړل؟
ځواب: مېږي به له مور سره کورته داني راوړلې.
۳. پوښتنه: د مېږي مور به دانې چېرته سپما کولې؟
ځواب: د مېږي مور دانې په کندو کې سپما کولې.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو د ژمي لپاره څه تیاری لرئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ

**موضوع:** الله (ج) **توري:** ب، م

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د ب/-م/ غږونو اوريدل.
۲. د (ب-م) تورو لوستل او ليکل.
۳. له نويو تورو سره د ۴ د کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې سم ځواب ويل.
(د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تير درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

**۱. د غږ اوريدل (۱۰ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره يوځای مربوط غږونه د کلمې په پيل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، غږ او نوم يې و وايئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره يوځای: په هوا کې يې وليکئ، په ګوتو سره يې په درسي کتاب کې تعقيب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرين په کتاب کې وليکي.

لومړی انځور (بوټ) دويم انځور (کباب)
دريم انځور (کب) څلورم انځور (مڼه)
پنځم انځور (ليمو) شپږم انځور(قلم)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقيقې)**

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **(يو = واحد، لاشريک)**، **(مل= ملګری)** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بيا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال تمرين کړي.
۳. د کيسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن يوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک مو مل دی؟
ځواب: الله (ج) مو مل دی.
۳. پوښتنه: الله (ج) د چا مل دی؟
ځواب: الله (ج) زموږ مل دی.
۴. ذهني پوښتنه: که موږ او تاسې له چا سره نيکي وکړو الله(ج) به راسره څه وکړي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بيا تکرار کړئ.
**۲. کورنۍ دنده:** د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ

**موضوع:** الله (ج) **توري:** و، د

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /او/-/دا/ غږ اورېدل.
۲. د (و، د) تورو لوستل او لیکل.
۳. له (و، د) او نورو تورو څخه جوړې شوې کلمې به په ځپو وویشلای او ترکیب کړای شي.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ونه، وهاب، پنسل، درمل، دُعا، وړمه، داوود، ګل، ګیلاس**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
۱. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ:
۲. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتابچه کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې) له لوستلو مخکې**

۱. د **مل** (ملګری) کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک مو مل دی؟
ځواب: الله مو مل دی.
۳. پوښتنه: الله د چا مل دی؟
ځواب: الله زموږ مل دی؟
۴. ذهني پوښتنه: که له چا سره ښه وکړو، الله به راسره څه وکړي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** آس **توري:** آ، س

### د زده کړې هدفونه
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /آ/- /س/ غږ اورېدل.
۲. د (آ، س) تورو لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکې دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

لومړی انځور (آس) دویم انځور (سرک)
درېیم انځور (بادام) څلورم انځور (پسه)
پنځم انځور (بابا) شپږم انځور (کمیس)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)
۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکې دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. د **(آس، اسد)** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکې وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکې دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکې دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکې دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د




هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک آس لري؟
ځواب: اسد آس لري.
۳. پوښتنه: په کیسه کې آس د چا و؟
ځواب: آس د اسد و.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسې آس ولرئ، څنګه پلان به ورته جوړ کړئ چې آس مو ښه وساتئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکې دې د (هـ،ل،ب،م) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسۍ خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکې دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکې د (هـ،ل، ب، م) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع:** آس **توري:** ا، ل، ب، م

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ا، ل، ب، م) غږونو اورېدل.
۲. د پورتنیو تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري ځارل او لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جملې څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱.دی، ۲.مَل، ۳.دی، ٤. لري.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به زه په دې باره کې فکر وکړم چې خپلو کارونو ته څنګه پلان جوړ کړم. بیا د همدې پلان په اړه پر تختې یو رسم وکاږئ او زده کوونکو ته وواياست چې څه مو رسم کړي دي.
۵. زده کوونکو ته وواياست چې اوس دې دوی هم فکر وکړي چې خپلو کارونو ته به څنګه پلان جوړوي. بیا دې د پلان په اړه یو رسم وکاږي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارۍ ارزونې ورځ** **توري:** و، د، آ، س

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (**و، د، آ، س**) غږونه پیژندل.
۲. د (**و، د، آ، س**) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیارى (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري خارل او لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)
۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړۍ جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جمله پخپله ولولي او بیا دې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳- ځوابونه: ۱- دی، ۲- مَل، ۳- لري، ۴- دی.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل(۵دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**
۱.زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ۴. املا (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **اوبه** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **او به**. دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله



فکر وکړي او د هرې هجا توری دې د تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **هوا، ماما، آلو، بلبل، اسد، بادام، دادا.**
۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
۴. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې راوغواړي او و دې ګوري چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا همدغه زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دند: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکي دې د (و، د، آ،س) تورو بڼو ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسۍ خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د تورو د بڼو او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د (و، د، آ،س) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**اتمه اونۍ** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** ښه شاګرد، **توري:** ی، ت

**تولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې د درس لوستلو پر مهال ځنګه خپل پام را ټول کړي.

**د اونۍ د زده‌کړې موخې**

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې د (**ی، ت**) غږونو اورېدل.
۲. د (**ی، ت**) تورو سم لوستل او ليکل. (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱۶ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
٥. د (**تلاوت، ماما، سبق، يوم، ښه، وخت**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. زده کوونکې د (ی، ت) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړي يادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- کلمې و ليکئ او ويې لولئ، زده کوونکي دې هغه و ګوري او غوږ دې ورته نيسي، بيا دې زده کوونکي هغه کلمې و ليکي او و لولي.
- هره ورځ د ترکيب او تجزيې د چوکاټ لومړۍ کلمه د لاسونو په حرکت سره ترکيب او تجزيه کړئ، د نورو کلمو تمرين دې زده کوونکي تر سره کړي، د اړتيا په صورت کې ور مرسته وکړئ.
- هغو زده کوونکو ته چې په کيڼ لاس ليکنه کوي، د قلم، کاغذ نيولو او د تورو ليکلو په اړه لازمې لارښوونې وکړئ.
- زده کوونکي و هڅوئ چې انځور رسم کړي او په هکله يې څو کلمې يا يوه جمله وليکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د درس لوستلو په مهال خپل پام را ټول کړي.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**عيني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عيني کلمې پر تختې وليکي، په زده کوونکو دې يې تکرار کړي چې له شکل سره يې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وويل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووايي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## ښه شاګرد

معلم صاحب له شاګردانو پوښتنه وکړه:
ګرانو ماشومانو! څوک راته ويلی شي چې **ښه** شاګرد چا ته وايي؟ ټولو شاګردانو لاسونه پورته کړل.
معلم صاحب وويل چې ملالۍ به يې ووايي.
ملالۍ وويل: چې په خپل وخت مکتب ته راځي. خپل **سبقونه** وايي. او* هر چا ته سلام اچوي.
معلم صاحب وويل: تورياليه، تا خو هم لاس جګ کړی، ته پکې څه وايې؟
تورياليي وويل: ښه شاګرد ځان، کالي او کتابونه پاک ساتي. له چا سره جنګ نه کوي.
معلم صاحب وويل**:**افرين!** ستاسو ټولو ځوابونه سم دي.
ګرانو ماشومانو، ملالۍ او تورياليي ته لاسونه و پړکوئ



**موضوع:** ښه شاګرد **توری:** ی

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د **ی** غږ اورېدل.
۲. د (**ی**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**یوم، لاس، یو، سابه، یاسر**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
٥. عیني کلمه (یوم) تدریس کړئ.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**تر اورېدلو د مخه**

۱. د **ښه**، **سبق**(لوست)، **آفرین**(شاباسی) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




٤. زده کوونکو ته وواياست چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ملالۍ به نور څه ویلي وي؟
**. معلم صاحب به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: معلم له شاګردانو څخه څه وپوښتل؟
ځواب: ښه شاګرد چا ته وايي.
۳. پوښتنه: اول ملالۍ ځواب ورکړ که توریالي؟
ځواب: ملالۍ.
٤. ذهني پوښتنه: څه باید وکړئ چې پام مو درس ته راټول وي او ښه زده کوونکي وئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** یما **توری:** ی

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ی** غږ اورېدل.
۲. د (ی) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.

۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.

۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای: په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

لومړی انځور (یوم) دویم انځور (پیاله)
دریم انځور (منګی)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.

۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

۳. عیني کلمه (وایي) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **درس** (لوست)، **ماما**، **وایي** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:

۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.

۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.

۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک د لیلا ماما دی؟
ځواب: یما.
۳. پوښتنه: یما او لیلا څه کوي؟
ځواب: درس وایي.
٤. ذهني پوښتنه: په کورنۍ کې مو څوک درسره مرسته کولی شي چې تاسو درس ولولئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** یما **توری:** ت

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د **(ت)** غږ اورېدل.
۲. د **(ت)** تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**توت، وهاب، تبر، درمل، تلاوت، ورمه، تله، ګل، ګیلاس**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې) له لوستلو مخکې**

۱. د **درس** (سبق)، **یما** (نوم دی)، **ماما** (د مور ورور) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



آ ـ وت | آلوت | وا لوت | والوت
سا ـ دات | سادات | آ یات | آیات

۱- سادات بُلبل نِړي

۲- بُلبل والوت

یما

۲۵

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: لیلا د یما څه ده؟
ځواب: خورزه یې ده.
۳. پوښتنه: څوک درس وایي؟
ځواب: یما او لیلا؟
۴. ذهني پوښتنه: د درس ویلو پر مهال خپل پام څنګه راټولولی شئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** تلاوت  **توری:** ت

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ت** غږ اورېدل.
۲. د **(ت)** توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښيئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (تله) دويم انځور (کتاب) دریم انځور (ساعت)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (لولي، کوي) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **تلاوت**(د قرآن کریم تلاوت)، **درس**(سبق)، **لولي** (درس وايي) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معناً او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.




۲. پوښتنه: تواب د توتیا څه دی؟
ځواب: لالا یې دی.
۳. پوښتنه: څوک تلاوت کوي؟
ځواب: توتیا تلاوت کوي.
٤. ذهني پوښتنه: که مو خور یا ورور په لوړ غږ خبرې کوي او تاسې درس لولئ، څنګه خپل پام درس ته راټول ساتلی شئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ی) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ی) توری په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع:** تلاوت **توري:** ي، ت

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (**ی، ت**) غږونو اورېدل.
۲. د (**ی، ت**) توري لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړۍ جملې څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جمله پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. دی، ۲. وایي، ۳. لولي، ۴. کوي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.


۱- نیما د لیلا ماما ____ (لري، دي)
۲- لیلا او نیما درس ____ (کوي، وایي)
۳- ځواب درس ____ (دادا، لولي)
۴- توتیا تلاوت ____ (کوي، ماما)
تلاوت

### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه پر دې فکر وکړم چې څنګه د درس ویلو پر وخت خپل پام را ټول کړم. بیا په همدې اړه پر تختې یو رسم وکاږئ او زده کوونکو ته ووایاست چې څه مو رسم کړي دي.
۵. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې هم فکر وکړي چې څنګه خپل پام درسونو ته راټولولی شي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** آ، س

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (آ،س) غږونه پیژندل.
۲. د (آ، س) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري څارل او لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ د سر دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **(الوت)** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **الـ وت** دا کلمه ۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.



دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **سادات، آیات، یما، لیلا، لمسی، والوت، سوی**

۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې راټولې او و دې ګوري چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا همدغه زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې دې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ت) توری بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکې قلم سره یې د کرسۍ خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (٥دقیقې)

- ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکی دې د (ت) توری په خپلو کتابچو کې په کړکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**نهمه اونۍ** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** د مکتب لاره **توري:** ر، پ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ر، پ**/ غږونو اورېدل.
۲. د (**ر، پ**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**تعلیم، مینه، لاروی، درومي، درس**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ر، پ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د سلام اچولو او روغبړ کولو پر ګټو پوه شي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- کلمې و لیکئ او ویې لولئ، زده کوونکي دې هغه و ګوري او غوږ دې ورته نیسي، بیا دې زده کوونکي هغه کلمې و لیکي او و لولي.
- هره ورځ د ترکیب او تجزیې د چوکات لومړۍ کلمه د لاسونو په حرکت سره ترکیب او تجزیه کړي، د نورو کلمو تمرین دې زده کوونکي تر سره کړي، د اړتیا په صورت کې ورسره مرسته وکړئ.
- هغو شاګردانو ته چې په کیڼ لاس لیکنه کوي، د قلم، کاغذ نیولو او د تورو لیکلو په اړه لازمې لارښوونې وکړئ.
- زده کوونکي و هڅوئ چې انځور رسم کړي او په هکله یې څو کلمې یا یوه جمله ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي د سلام او روغبړ کولو په ګټو وپوهوي.
-**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د مکتب لاره

خیبر کاکا له **تعلیم** سره **مینه** لري. سارا یې لور او پردېس یې زوی دی. دوی وروبانډې ګران دي. خیبر دواړه په مکتب کې شامل کړل*. د مکتب لاره یې وروښودله. ورته ویې ویل: بچیانو! پر همدې لاره به مکتب ته ځئ او راځئ. پر هر **لاروي** به سلام اچوئ. ګورئ**. نه به د سړک په منځ کې ځئ او نه به په فصلونو کې. سارا او پردیس د پلار خبرې ومنلې او په خوشحالۍ مکتب ته روان شول.



**موضوع:** د مکتب لاره **توری:** ر

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پيل کې د /ر/ غږ اورېدل.
۲. د (ر) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکيبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کيسې پوښتنو ته سم ځوابونه ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقيقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ يې له زده کوونکو سره وپيژنئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي د لاسونو په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پيل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**رمه، وزه، رستم، لسم، رسم، ثواب**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږ پيل شوې وي.
٤. توري پر تختې وليکئ، غږ او نوم يې و وايئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې وليکئ، په خپلو ګوتو يې تعقيب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ دوي لومړی کلمې پر تختې وليکئ. دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې وليکئ او له زده کوونکو سره يې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. داورېدلوفعاليت(۱۳ دقيقې)**
**تر اورېدلو د مخه**

۱. د **تعليم**( زده کړه)، **مينه** (محبت)،**لاروی**( په لاره تېرېدونکی کس) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بيا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرين کړي.
۳. د کيسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.



**د اورېدلو پر مهال**

۱. کيسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کيسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*.بيا به يې څه کړي وي؟
**. نور به يې څه ورته ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: خيبر کاکا له څه شي سره مينه لري؟
ځواب: له تعليم سره.
۳. پوښتنه: خيبر کاکا، سارا او پردېس چېرته شامل کړل؟
ځواب: په مکتب کې.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک د سړک په منځ کې روان وي، څه ورته واياست؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بيا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکيب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ.

**موضوع:** د مکتب لاره **توري:** ر

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د *ا/* غږ اوربدل.
۲. د (ر) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ د کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
لومړی انځور (رمه) دویم انځور (خرما)
درېیم انځور (غر)
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د تورو د غږونو له لوستلو سره یوځای یې په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني(شکلي) کلمې: (**مکتب، درومي**) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **درومي (ځي) درس(لوست)، لاروی( پر لاره روان)** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: سارا چېرته درومي؟
ځواب: مکتب ته درومي.
۳. پوښتنه: سارا چا ته سلام کوي؟
ځواب: لارویو ته.
٤. ذهني پوښتنه: هر چا ته سلام اچول څه ګټې لري؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** د مکتب لاره **توری:** پ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /پ/ غږ اورېدل.
۲. د (پ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي د لاسونو په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**پل، سیند، پلار، مور، پیاله، ګیلاس، پري**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**درومي، درس، لاروی**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک مکتب ته درومي؟
ځواب: سارا.
۳. پوښتنه: سارا څه شی وایي؟
ځواب: درس
۴. ذهني پوښتنه: په کوڅه یا سرک کې یو چا ته د سلام اچولو ښه طریقه کومه ده؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** توپ **توری:** پ

**د زده‌کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /پ/ غږ اورېدل.
۲. د (پ) توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده‌کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو گوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (پیاله)، دویم انځور (څپلې)، دریم انځور (کپ)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني(شکلي) کلمه: (**پمپوي**) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**لوبه، توپ، پمپوي**) کلمو د معنا په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې متن یوځای په گډه سره ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.




**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: پوپل څه شی لري؟
ځواب: پوپل توپ لري.
۳. پوښتنه: پوپل څه کوي؟
ځواب: پوپل توپ پمپوي.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو څه وخت توپ بازي کوئ او له چا سره؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده‌کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ر) توری بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ر) توری په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار      توری: ر، پ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ر، پ** غږونو اورېدل.
۲. د (**ر، پ**) توري لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکې د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکي توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکې له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکې زده کوونکو ته ښیي چې لومړۍ جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکې زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **درومي**، ۲. **وایی**، ۳. **پمپوي**، ۴. **توپ**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکې دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.


۱- سارا ښوونځي ته ____ (درومي، اخلي)
۲- سارا ____ وایي (توپ، درس)
۳- پوپل توپ ____ (پمپوي، پیاله)
۴- په ____ لوبه کوي (توپ، پاک)
توپ

### ۴. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه د سلام اچولو او روغبړ په اړه خپلې کیسې ته فکر وکړم. بیا په همدې اړه پر تختې یو رسم وکاږئ او زده کوونکو ته ووایاست چې څه مو رسم کړي دي.
۵. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې خلکو ته د سلام اچولو او روغبړکولو په اړه یو رسم وکاږي.
۶. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ی، ت

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ی، ت/** غږونو پېژندل.
۲. د **(ی، ت)** تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري ځارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **(توپ)** کلمه ولولي او هجا یې د لارسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **توپ**. دا کلمه **(۱)** هجا لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.



دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **(ترپ، رپ، لاره، سارا، سلام، لاروی، درومي).**
۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې چا دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توري او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (پ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي د(پ) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**لسمه اونۍ** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** له ښوونځي سره مرسته **توري:** ن، ج

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ن، ج/ غږونو پېژندل.
۲. د (ن، ج) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**متوجه، شورا، اتفاق، تنه ده، اوبوي**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ن، ج) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزي- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې ځان ته ځنګه هدف وټاکي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- کلمې و لیکئ او ویې لولئ، زده کوونکي دې هغه و ګوري او غوږ دې ورته ونیسي، بیا دې زده کوونکي هغه کلمې و لیکي او و لولي.
- هره ورځ د ترکیب او تجزیې د چوکاټ لومړۍ کلمه د لاسونو د حرکتونو په کولو ترکیب او تجزیه کړي، د نورو کلمو تمرین دې زده کوونکي تر سره کړي، د اړتیا په صورت کې ور مرسته وکړئ.
- هغو زده کوونکو ته چې په کیڼ لاس لیکنه کوي، د قلم، کاغذ نیولو او د تورو لیکلو په اړه لازمې لارښوونې وکړئ.
- زده کوونکي و هڅوئ چې انځور رسم کړي او په هکله یې څو کلمې یا یوه جمله ولیکي.
- ښوونکی دې په دې اونۍ کې زده کوونکي وپوهوي چې ځنګه ځان ته هدف وټاکي.
- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

**له ښوونځي سره مرسته**

ښوونکي جان محمد وویل: ګرانو شاګردانو غوږ شئ. ټول شاګردان **متوجه** شول. ښوونکي وویل*: دا شاګردان ولې غیر حاضري کوي؛ نن خو تر پرون هم کم راغلي دي. زده کوونکي نبي جان وویل: پاس د ټولګي بام خراب دی. ښوونکي وویل: د بام د خرابېدو یې له غیر حاضرۍ سره څه؟ نبي جان وویل: خو په لمر او باران کې په عذاب وي.



ښوونکي د نبي جان دلیل سم وباله. خبره یې له مدیر صاحب سره شریکه کړه. آخر خبره د کلي **شورا** ته ورسېده**. کلیوال په **اتفاق** راغلل؛ د ټولګي بام یې جوړ کړ. بله ورځ ټولګی له شاګردانو ډک ؤ.

**موضوع:** له ښوونځي سره مرسته **توری:** ن

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ن/ غږ اورېدل.
۲. د (ن) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ناک، شپون، نوید، قلم، سابه، نارنج**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **متوجه،** (پام کول) **شورا،** (د یوې موضوع د حل لپاره د خلکو غونډه، **اتفاق** (یووالی) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ښوونکي به څه ویلي وي؟
**. بیا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: ښوونکی څوک و؟
ځواب: جان محمد.
۳. پوښتنه: چا غیر حاضري کوله؟
ځواب: شاګردانو.
٤. ذهني پوښتنه: د کلیوالو هدف ( مقصد) څه و؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ونه **توری:** ن




### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ن/ غږ اورېدل.
۲. د (ن) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یې یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(ناک)، دویم انځور (غنم)، دریم انځور (چمن)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (تږې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**تږې** (څوک چې د اوبو څښلو ته ضرورت ولري)، **اوبوي** (اوبه کوي) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څه شی تږې وه؟
ځواب: ونه.
۳. پوښتنه: څوک ونه اوبه کوي؟
ځواب: نسیمه.
٤. ذهني پوښتنه: که ووینئ چې یو شی سم نه دی، څه به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ونې **توری:** ج

### د زده‌کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د **/ج/** غږ اورېدل.
۲. د **(ج)** توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده‌کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده‌کوونکي د لاسونو په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**غاښ، جومات، جوار، قلم، جوال**) وکاروئ.
۳. زده‌کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
۴. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې ولولئ.
۴. زده‌کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ترې**، اوبوي (اوبه کوي) کلمو د معنا په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.



۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده‌کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ونه څنګه وه؟
ځواب: ونه ترې وه.
۳. پوښتنه: نسیمه څه شی اوبه کوي؟
ځواب: ونه.
۴. ذهني پوښتنه: څنګه پوهېږئ چې ونې ترې نه دي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** جوار **توری:** ج

**د زده‌کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ا ج/** غږ اوربدل.
۲. د (ج) توري لوستل او لیکل.
۳. له توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده‌کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
لومړی انځور (جومات) دویم انځور (مجله) دریم انځور (حج)
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري غږ له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **(اوبه کوي)** کلمې د معنا په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده‌کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د




هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک جوار لري؟
ځواب: نجیب جوار لري.
۳. پوښتنه: څوک جوار اوبه کوي؟
ځواب: سراج.
٤. ذهني پوښتنه: ځنګه کولی شئ له یو بل سره په ګډه کار وکړئ چې یو هدف ته ورسېږئ؟

**تکرار او کورنی دنده (۵ دقیقې)**

۱. زده‌کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنی دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ن) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ بنایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنی دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکي دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ن) توری په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار توري: ن، ج**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ن، ج/ غږونو اورېدل.
۲. د (ن، ج) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ځارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **تړي، ۲. ونه، ۳. جوار، ۴. اوبه کوي.**

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.




**۴. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه پر دې فکر وکړم چې څنګه ځان ته یو هدف وټاکم. بیا په همدې اړه پر تختې یو رسم وکاږئ او زده کوونکو ته ووایاست چې څه مو رسم کړي دي.
۵. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې هم فکر وکړي چې څنګه ځان ته یو هدف ټاکلی شي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي.
۶. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډې جملې ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ر، پ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **/ر، پ/** غږونه پیژندل.
۲. د **(ر، پ)** تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اوربدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د توري ځارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکات لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **(سراج** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **سـ /ـراج**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د



هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **(رواج، وهاج، منهاج، نسیمه، ونه، نوید، مرسته).**
۳. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولگي کې وگرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وگوري چې چا دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ج) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دی له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ج) توری په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**یوولسمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** کورنۍ **توري:** ک، ټ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ک، ټ**/ غږونو اورېدل.
۲. د (**ک، ټ**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**سکاش ټېپ، مننه، خیرې، وموند، ورک، ټال**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ک، ټ) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- پوه شي چې په یوه خاص حالت کې څه احساسوي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې خو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې په دې اونۍ زده کوونکي وپوهوي چې په خاصو حالتونو کې دې خپل احساس وپېژني.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د کتابونو ښه ساتل

کریم الله خپل کتابونه په بکس کې اچول. ویې ژړل*. مشر ورور یې پوښتنه وکړه: په څه شوې؟ ولې ژاړې؟ کریم الله وویل: کریمې خور مې د کتاب پاڼه وشکوله. مشر ورور یې وویل: کریمې ښه کار نه دی کړی. زه به یې وپوهوم. ته صبر وکړه چې زه **سکاش ټېپ** راواخلم.** هغه، **خیرې** شوی کتاب یې ورته جوړ کړ. نورو کتابونو ته یې هم پوښ ورکړ. کریم الله له مشر ورور څخه **مننه** وکړه، ویې ویل: نور به کتابونه ښه ساتم.



**موضوع:** د کتابونو ښه ساتل **توری:** ک

**د زده‌کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ک/ غږ اورېدل.
۲. د (ک) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده‌کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده‌کوونکي د لاس په پورته کولو معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه دغه کلمې (**کتاب، کبیر، قلم، هلک، کدو، دوکان**) وکاروئ.
۳- زده‌کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ
۵. توری له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده‌کوونکي دې یې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. داورېدلوفعالیت(۱۳ دقیقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **خیرې**(پرې)، **سکاش ټېپ**(رابرټیپ)، **مننه** (تشکر) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده‌کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. کریم الله به ولې ژړلي وي؟
**. مشر ورور به یې څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: کریم الله کتابونه په څه شي کې اچول؟
ځواب: په بکس کې.
۳. پوښتنه: چا د کتاب پاڼه شکولې وه؟
ځواب: کریمې.
٤. ذهني پوښتنه: که کشره خور یا کشر ورور مو کتاب درته خراب کړي، څه احساس به کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده‌کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** د کتاب **توری:** ک

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ک/ غږ اورېدل.
۲. د (ک) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ د کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۱. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۲. د توري دغږ له لوستلو سره یې یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (کتاب) دویم انځور (مکتب)
دریم انځور (پالک)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (یې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ورک** (نادرک)، **وموند** (پیدا کړ)، **سم** (ښه) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د چا کتاب ورک و؟
ځواب: د کریمې.
۳. پوښتنه: پلار یې کریمې ته څه وویل؟
ځواب: ویې ویل: کتابونه باید سم وساتو.
٤. ذهني پوښتنه: که مو څه شی ورک شي، څه احساس به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** کتاب **توری:** ټ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /ټ/ غږ پېژندل.
۲. د (ټ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي د لاس په پورته کولو معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ټال، ټوپ، ظریف، کوټ، ټالی، درمل**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**ورک، وموند، سم**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.


۱- کریم پیلوټ دی
۲- کریم د ترینګوټ دی
کتاب

۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: له کریمې څخه څه شی ورک و؟
ځواب: کتاب یې ورک و.
۳. پوښتنه: پلار یې کریمې ته څه وویل؟
ځواب: کتابونه باید سم وساتئ.
۴. ذهني پوښتنه: که مو یو شی ورک شوی وي، څه کوئ چې ونه ځوربېږئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ټال **توري:** ټ

## د زده کړې هدفونه
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ټ/ غږ اوریدل.
۲. د (ټ) توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.
لومړی انځور (ټال)دویم انځور(خټکی) دریم انځور (کټ)

### ۲. د کلمو لوستل(۱۲ دقیقې)
۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (خاټوله) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. د (**ټال= زانګو، ترینکوټ = د ارزګان مرکز، خاټوله= ښځینه نوم**) کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د



هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: خاټوله د کوم ځای ده؟
ځواب: د ترینکوټ.
۳. پوښتنه: خاټوله څو ورونه لري؟
ځواب: یو ورور لري.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې په ټال کې زانګئ، څه احساس به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکي دې د (ک) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکي دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ک) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ک، ټ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ک، ټ**/ غږونو اورېدل.
۲. د (**ک، ټ**) توري لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله ځرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **ورک**، ۲. **وساتو**، ۳. **ورور**، ٤. **ټال**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا درېو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به زه خپله کیسه را یاده کړم. داسې کیسه ورته وکړئ چې یو وخت تاسو یو ډول احساس درلود او یو څوک سبب شو چې احساس مو بدل شي (مثلاً: زه چې وروکی وم، کتابچه مې ورکه شوې وه. زه خپه وم. خو ښوونکي راته وویل چې مه خپه کېږه، کتابچه به دې پیدا شي. بیا مې زړه ښه شو). وروسته پرتختې څینې کلمې ولیکئ، لکه خپه او خوشحاله.
۵. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې همداسې وخت را یاد کړي چې دوی خپه، په غوسه، یا وارخطا وو خو بل چا څه ورته ویلي او د دوی احساس بدل شوی و. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ن، ج

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ن، ج/** غږونو پیژندل.
٢. د (**ن، ج**) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٠٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (٥ دقیقې)**

**١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
٢. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږ یې لولي.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د توري څارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

**٢. د کلمو لوستل (١٠ دقیقې)**

١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
٢. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**٣. د دویم متن بیا لوستل (٥دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایې چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (١٠ دقیقې)**

١. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
٢. هغوی ته وواياست چې د (**پیلوټ**) کلمه ولولي **پیـ لوټ**. دا کلمه (**٢**) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې ولیکي.



دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**پاک، ورک، آلوکاټ، بوټ، کوټ، ترینکوټ، کریم**).
٣. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولگي کې وگرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وگوري چې چا دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)**

١. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ٣ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (٣٥ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ټ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (٥دقیقې)**

- ښوونکي دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ټ) توری په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**ددولسمه اونۍ (د تکرار اونۍ) موضوع:** د تېرو اونيو تکرار **فرعي موضوع:** ښوونځی **توري:** ن، ج، ک، ټ، ی، ت، ر، پ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ن، ج، ک، ټ، ی، ت، ر، پ**/ غږونو پېژندل.
۲. د (**ن، ج، ک، ټ، ی، ت، ر، پ**) تورو سم لوستل او ليکل. (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
٥. د (**پوهوي، اندېښمن، موسکی، وار، مرسته**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. زده کوونکي د (ی، ت، ر، پ، ن،ج، ک، ټ، ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه ستونزو ته د حل لارې پيدا کړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې يادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- يوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بيا يې ترکيب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کيسې يو پاراګراف و لولئ، بيا يې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بيا دې زده کوونکي په خپل منځ کې يو ځای و لولي او وروسته دې يې يو زده کوونکی په يوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې يو انځور رسم او په هکله يې څو کلمې او څو لنډې جملې وليکي.
- ښوونکی دې د دې اونۍ په لوستونو کې زده کوونکي په دې پوهوي چې د ستونزو لپاره دې څنګه حل لارې پيدا کړي.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## کورنۍ دنده

ملالۍ ښوونکې ده. هغه زده کوونکي ښه **پوهوي**. نن يې ورته وويل:
- لوستل شوي (۱۷) توري به دوه دوه ځلې ليکئ. پنځه داسې کلمې هم وليکئ چې (ټ) په کې راغلې وي.



زده کوونکې موسکا کور ته راغله. **اندېښمنه** وه. مور يې پوښتنه ترې وکړه: موسکا لورکۍ ولې خپه يې؟ موسکا وويل*: کورنۍ دنده مې نه ده ليکلې. مور يې وويل**: مور دې جار شه، ښه فکر په کې وکړه. په کوم ځای چې نه پوهېدې، ايمل ورور به دې مرسته درسره وکړي. موسکا **موسکی** شوه. په ليکلو يې پيل وکړ. ايمل ورسره مرسته وکړه.

**موضوع:** کورنۍ دنده **توري:** ی، ت

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ی، ت/ غږونو اورېدل.
۲. د (ی، ت) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي د لاس په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**یوم، لکه، دی، تاج، یما، وله، یو، تره**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **پوهول، اندېښمنه**(خپه) **موسکی** (په شونډو کې خندل) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. موسکا به څه ویلي وي؟
**. مور به ورته څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: موسکا څنګه وه؟
ځواب: اندېښمنه وه.
۳. پوښتنه: چا ورسره مرسته کوله؟
ځواب: ایمل.
٤. ذهني پوښتنه: که مو کورنۍ دنده سخته وي، څه به کوئ؟

**بیا کتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** مرسته **توری:** ر، پ



### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ر، پ/ غږونو اورېدل.
۲. د (ر، پ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ځلورو کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.

لومړی انځور (رمه) دویم انځور (خرما)
دریم انځور (غر)

۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یې یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)
۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. د **جمله** (څو کلمې چې پوره خبره وکړي)، **سمه** (څه چې غلطه نه وي)، **مرسته** (کومک) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: رویا د چا لور ده؟
ځواب: د رومان.
۳. پوښتنه: رویا څه لیکله؟
ځواب: یوه جمله.
٤. ذهني پوښتنه: که یو کار درته سخت وي، څه به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** مرسته    **توری:** ن، ج

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /ن، ج/ غږ اورېدل.
۲. د (ن، ج) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیارى (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړی غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي د لاس په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ناک، تاک، نازو، جوار، جومات، مات، تار**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږونو پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**جمله، سمه، مرسته**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: له رویا سره چا مرسته وکړه؟
ځواب: رومان.
۳. پوښتنه: رویا جمله څنګه ولیکله؟
ځواب: سمه یې ولیکله.
۴. ذهني پوښتنه: څوک د کورنۍ دندې په ترسره کولو کې درسره مرسته کولی شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** کورنۍ دنده ده **توري:** ک، ټ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ک، ټ**/ غږ اورېدل.
۲. د (**ک، ټ**) توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښيئ.
لومړی انځور(کتاب) دویم انځور (مکتب) دریم انځور (پالک)
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکې دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ټالۍ**(زنګیدل)، **ټال** (هغه رسۍ چې خلک پرې زانګي)، **وار** (نوبت) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.




**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د ټال وار د چا دی؟
ځواب: د پټان.
۳. پوښتنه: خاتوله څه شی لولي؟
ځواب: کتاب.
٤. ذهني پوښتنه: ولې هر کار باید په وار سره وکړو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ی، ت، ر، پ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکې دې له څو زده کوونکو څخه د تورو د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ی، ت، ر، پ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار          توری: ی، ت، ر، پ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ی، ت، ر، پ**/ غږونو اورېدل.
۲. د (**ی، ت، ر، پ**) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ښارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱.**لور**، ۲. **کوله**، ۳. **ټالیو**، ٤. **کتاب**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

#### د لوستلو پر مهال

۱.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به زه د سختو کارونو په باره کې پر خپلې کیسې فکر وکړم. بیا زده کوونکو ته یوه کیسه ووایئ چې څنګه مو یوه سخت کار ته د حل لاره پیدا کړې وه. وروسته په دې اړه پرتختې یو رسم وکاږئ او یو څو کلمې لکه سخت،ستونزمن او د حل لاره ولیکئ.
۵. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې هم فکر وکړي چې څنګه یې یوه سخت کار ته د حل لاره موندلې وه. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
٦. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** — **توري:** ن، ج، ک، ټ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ن، ج، ک، ټ**/ غږونه پېژندل.
۲. د **(ن، ج، ک، ټ)** تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري ځارل، د تمرین په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جملې څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جمله پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **ترې**، ۲. **جوار**، ۳. **کتاب**، ٤. **ټال.**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به څېنې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **(نسیمه)** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکت سره بېلې کړي **نـ ـسیـ ـمه** . ذا



کلمه **(۳)** هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. ( **مینه، لودین، تنور، جومات، مجاهد، جوار، نارنج**).
۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې چا دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توري او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ن، ج، ک، ټ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د تورو د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ن، ج، ک، ټ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

دیارلسمه اونۍ موضوع: کور فرعي موضوع: روغتیا توري: ړ، خ

**د اونۍ د زده‌کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ړ، خ/ غږونو اورېدل.
۲. د (ړ، خ) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**ټک**، **ګټوره**، **خیرې**، **ککړ**، **کړاو**، **درمل**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ړ، خ) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې شایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه د یو شي په اړه معلومات په ترتیب سره را یاد کړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکت سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مک ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې په دې اونۍ کې زده کوونکي دې ته وهڅوي چې معلومات په ترتیب سره په یاد وساتي.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## روغتیا

د ښوونکې ورانګې، مېړنې ته ورپام شو. ګورې چې نوکان یې اوږده دي. تر نوکانو لاندې یې **خیرې** دي. ویښته یې هم خیرن او غوږ پر دي. ښوونکې وویل*: خوږو شاګردانو! خبرې مې د زړه په غوږونو واورئ. خپلې پاکۍ او صفایي ته تل پام کوئ. کور او ټولګی مو په خاورو خځلو مه ککړوئ. نوکان مو وخت په وخت لنډوئ. غاښونه مو په مسواک یا برس پاکوئ. تل پاک خواړه خورئ او پاکې اوبه څښئ. په **ککړو** لاسونو څه شی مه خورئ. که همداسې وکړئ** نو د ناجوړۍ له **کړاوه** به خلاص وئ.



**موضوع:** روغتیا **توری:** ړ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ړ/ غږ اورېدل.
۲. د (ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ يې له زده کوونکو سره راوښيئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي د لاس په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ړوند**، **ړومبی**، **ړنګ**، **اړم**، **تړل**، **پلار**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم يې و وايئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې ولیکئ، په خپلو گوتو يې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره يې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**تر اورېدلو د مخه**

۱. د **خيري** (چرک)، **ککړ** (ناولی)، **کړاو** (تکلیف) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.



٤. زده کوونکي وراندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ښوونکې به څه ویلي وي؟
**. ستاسو په فکر که همداسې وکړئ، څه به وشي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: څوک ښوونکې وه؟
ځواب: وړانګه.
۳. پوښتنه: چا ته يې وړپام شو؟
ځواب: مېړني ته
٤. ذهني پوښتنه: ښوونکې زده کوونکو ته کومې سپارښتنې وکړې چې ناروغه نه شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** لړم **توری:** ړ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ/ غږ اورېدل.
۲. د (ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یې یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (روند) دویم انځور (لړم)
دریم انځور (ګیدړ)

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ټک** (چیچل)، **درمل** (دوایي، دارو) **کلینیک** (شفاخانه) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.


روند
روند
لړم
لـ ړم
لومړی
کوڅ

لړم
ویاړ ناست و
لړم ټک ورکړ
ویاړ یې کلینیک ته یووړ
درمل یې ورکړل
ویاړ اوس جوړ دی

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: لړم چا ته ټک ورکړ؟
ځواب: ویاړ ته.
۳. پوښتنه: ویاړ یې چېرته یووړ؟
ځواب: کلینیک ته.
۴. ذهني پوښتنه: څه باید وکړو چې لړم مو و نه چیچي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** لړم  **توری:** خ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /خ/ غږ اورېدل.
۲. د (خ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي د لاس په پورته کولو سره معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوې دي او که نه: دغه کلمې (**خرما، خام، اړخ، اختر، بلخ**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي
۴. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
۴. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني کلمه (ګټه) تدریس کړئ.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**ټک، کلینیک، درمل**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.




۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ویاړ یې چېرته یوور؟
ځواب: کلینیک ته.
۳. پوښتنه: ویاړ ته یې څه شی ورکړل؟
ځواب: درمل.
۴. ذهني پوښتنه: د ویاړ کورنۍ اول څه وکړل، او بیا یې څه وکړل چې ویاړ ښه شو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** خُرما **توری:** خ

### د زده کړې موخې
١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /خ/ غږ اورېدل.
٢. د (خ) توري لوستل او لیکل.
٣. له تورو د خلورو کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
١. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وپېژنئ.
٢. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
٣. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو گوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (خرما)دویم انځور (تخته) دریم انځور (ملخ)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)
١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه یې او انفرادي ډول ولولي. **عینې کلمه( گټوره) تدریس کړي**

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

### له لوستلو مخکې
١. د **خوندوره**(مزه داره)، **گټوره** (فایده منده) **مدینه منوره** (د عربستان یو ښار دی) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
٢. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
٣. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

### د لوستلو پر مهال
١. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
٢. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په گډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.



### له لوستلو وروسته
١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
٢. پوښتنه: خرما خنگه مېوه ده؟
ځواب: خوندوره ده.
٣. پوښتنه: خرما د بدن له پاره څنگه ده؟
ځواب: گټوره ده.
٤. ذهني پوښتنه:د خرما په اړه مو کوم معلومات په یاد پاتې دي؟

### بیا کتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
١. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکي دې د (ړ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ړ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار        توري: ړ، خ**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ، خ/ غږونو اورېدل.
۲. د (ړ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکې د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکې توري پر تختې لیکي، په گوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکې له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکې زده کوونکو ته ښيي چې لومړۍ جمله څنگه ولولي.
۲. ښوونکې زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **ټېک، ۲. کلینیک، ۳. راوړه، ٤. خوندوره**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکې دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وگوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې هم د خپلې کیسې په اړه فکر وکړي، بیا دې د خپلې کیسې په اړه یو رسم وکاږي چې په ترتیب سره دکارونو د ترسره کولو پړاوونه وښيي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولگي کې وگرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وگورئ، په هکله یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامداري ارزونې ورځ** **توري:** ک، ټ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ک، ټ**/ غږونو پیژندل.
۲. د (**ک، ټ**) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پیژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې لیکل.

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**پراخ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **پـ / راخ** دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا



په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې د تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**ماه رخ، ورخ، پوخ،ویاړ، لړم، جوړ، درمل**) ده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولگي کې وگرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وگوري چې چا دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولي. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (خ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د تورو د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (خ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**خوارلسمه اونۍ** **موضوع:** کور **فرعي موضوع:** د کور باغچه **توري:** ش، غ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د (**ش، غ**) غږونو اورېدل.
۲. د (**ش، غ**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**بوټي، ورین، غوړېدل، شیندل، ګټه، سابه**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ش، غ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه خپل مزاج ښه کړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې خو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې په دې اونۍ کې زده کوونکي وپوهوي چې څنګه خپل مزاج او رواني حالت ښه کړي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.

- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې عیني کلمې پر تختې ولیکئ، په زده کوونکو دې یې تکرار کړی چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلوونکو درسونو کې و وایئ.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د کور باغچه

شفیقه په کور کې باغچه لري. په باغچه کې یې ښکلي ګلان او بوټي دي. د شفیقې پلار شمس په باغچه کې کچالو کرل. شفیقې ورته وویل: پلاره! د رومیانو، بینډیو، پالک او نورو سبو تخمونه هم په کې **وشینده**. پلار یې وویل: آفرین لوري! خو* دا خبرې دې له چا څخه زده کړې دي؟ شفیقې وویل: زموږ ښوونکي وایي چې د سبو خوړل ډېره **ګټه** لري. پلار د شفیقې خبره ومنله. په باغچه کې یې نور تخمونه هم وشیندل**. شیندل شوي تخمونه راشنه شول. دوی اوس په باغچه کې رنګارنګ ګلونه او شنه **سابه** لري.



**موضوع:** د کور باغچه　　**توری:** ش

### د زده کړې موخې
۱. د کلمو په پیل کې د /ش/ غږ اورېدل.
۲. د (ش) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره وپېژنئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**شپون**، **شمله**، **قلم**، **شاپور**، **پنسل**، **سابه**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)
۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني کلمه (تودوي) تدریس کړئ.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)
**تر اورېدلو د مخه**
۱. د **شیندل** (پاشل)، **ګټه** (فایده)، **سابه** (سبزي) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال یې تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**
۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. پلار به نور څه ویلي وي؟
**. ستاسو په فکر بیا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: د شفیقې دوی په باغچه کې څه وو؟
ځواب: ګلان او بوټي.
۳. پوښتنه: پلار یې څه کرل؟
ځواب: کچالو.
٤. ذهني پوښتنه: په کیسه کې شفیقې د ویاړ احساس کاوه ځکه چې پلار یې مشوره ومنله. تاسو کله د ویاړ احساس کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** شین باغ    **توري:** ش

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ش**/ غږ پېژندل.
۲. د (**ش**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یې یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (شپون)   دویم انځور (پیشو)
درېیم انځور (دېش)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې: (**بوټي، شاه ولي**) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **بوټي** (نیالګي)، **شین**، **وړین** (غوړېدل) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال یې تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چا پټۍ درلود؟
ځواب: شمس.
۳. پوښتنه: شازیې ورته څه راوړل؟
ځواب: بوټي
٤. ذهني پوښتنه: پټۍ چې شین شو، شمس او شازیه ورته خوشحاله شول. تاسو په څه شي خوشحالېږئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** شین باغ **توري:** غ

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د /غ/ غږ اورېدل.
۲. د (غ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**غاښونه، غر، مسواک، غوږ، قلم، آسمان**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي
۱. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۲. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**بوټي، شین، کرل**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: بوټي یې څه کړل؟
ځواب: بوټي یې وکرل.
۳. پوښتنه: پټی څنګه شو؟
ځواب: شین شو.
۴. ذهني پوښتنه: کله مو په باغ کې مېله کړې ده؟ د مېلې کومه ښه خاطره لرئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** باغچه **توری:** غ

### د زده کړې هدفونه
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د اغ/ غږ اورېدل.
۲. د (غ) توري لوستل او لیکل.
۳. له توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وپېژنئ.
لومړی انځور(غاښ) دویم انځور (شلغم) دریم انځور(جغ)
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### ۲. د توري او کلمو لوستل او لیکل (۱۲ دقیقې)
۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (مړاوي، وغوړېدل)

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**
۱. د **مړاوي** (هغه حالت چې د بوټي پاڼې ګونځې او ځوړندې وي)، **وغوړېدل** (تازه شول) **باغ** ( د ونو او ګلونو ځای) کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال یې تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.




**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: غمی چېرته راغی؟
ځواب: باغ ته.
۳. پوښتنه: د باغ بوټي څنګه وو؟
ځواب: مړاوي وو.
٤. ذهني پوښتنه: په کیسه کې بوټي مړاوي وو، که تاسې هم سترې یا خپه وئ، څه به کوئ چې خوشحاله او تازه شئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکي دې د (ش) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ش) توری په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ش، غ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ش، غ** غږونو اورېدل.
۲. د (**ش، غ**) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پیژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **لري**، ۲. **راوړل**، ۳. **وو**، ٤. **اوبه**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې هم د خپلې کیسې په اړه فکر وکړي. فکر دې وکړي چې کله خپه وي، څه کوي چې خپګان یې لرې شي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري: ړ، خ**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ، **خ**/ غږونو پیژندل.
۲. د (ړ، **خ**) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویر په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده‌کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د توري ځارل، په کتابچه کې لیکل.

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**۴. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به څینې کلمې لیکئ.
۲. هغوی ته ووایاست چې د (**بیرغ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **بیـ / ـرغ**. دا کلمه



(۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې د تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**باغ، ناروغ، دماغ، بادام باغ، شاه ولي، شین، ورین**)
**۳**. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولگي کې وگرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وگوري چې څا دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغه زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنی دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توری او غږ تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (غ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنی دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (غ) توري په خپلو کتابچو کې په کړکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**پنځلسمه اونۍ بیا** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** ملګرتیا **توري:** ز، چ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ز، چ/ غږونو اورېدل.
۲. د (ز، چ) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**پالېز، خاوند، غوټه، زکات، بې وزله، چوغکه**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ز، چ) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه له اړمنو کسانو سره مرسته وکړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او یا څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې د دې اونۍ په لوستونو کې زده کوونکي پوهوي چې له اړمنو کسانو سره مرسته وکړي.
- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## ملګرتیا

اوښ او ګیدړه سره ملګري وو. دواړه د سیند پورې غاړې **پالیز** ته روان شول. ګیدړه د اوښ په شا سپره شوه. له سیند څخه پورې وتل. کله چې پالیز ته ورسیدل، دواړو خټکي وخوړل. ګیدړې اوښ ته وویل:



زما عادت دی چې کله خټکي وخورم، چیغې وهم. ګیدړې چیغې کړې او وتښتېده.*

د پالیز **خاوند** خبر شو راغی اوښ یې له پالیز څخه وشاړه. کله چې اوښ د سیند غاړې ته راغی. ګیدړه دلته ولاړه وه. بیا اوښ په شا سپره کړه. د سیند په منځ کې اوښ وویل: زه اوس **غوټه** وهم، دا مې عادت دی.**

ګیدړه په خپله ګناه پوه شوه له اوښ څخه یې بښنه وغوښته او اوښ د هغې بښنه ومنله.

**موضوع:** ملګرتیا    **توری:** ز

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پيل کې د **/ز/** غږ اورېدل.
۲. د **(ز)** توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکيبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کيسې پوښتنو ته سم ځوابونه ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ يې له زده کوونکو سره راوښيئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پيل شوي دي او که نه: دغه کلمې **(زمری، کبير، زامن، هلک، زکات)** وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږ پيل شوي وي.
٤. توری پر تختې وليکئ، غږ او نوم يې و وايئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې وليکئ، په خپلو ګوتو يې تعقيب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرين په کتاب کې وليکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل او ليکل (۱۲ دقيقې)

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ. دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې وليکئ او له زده کوونکو سره يې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عيني کلمه (ورکوي) تدريس کړئ.

### ۳. د اورېدلو فعاليت (۱۳ دقيقې)

**تر اورېدلو د مخه**

۱. د **پاليز**(د خټکيو، هندوانو او بادرنګو کرونه ده)، **خاوند** (څښتن)، **غوټه**(په اوبو کې ټول ځان لاندې کول) کلمو په اړه له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بيا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال تمرين کړي.
۳. د کيسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کيسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کيسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. بيا به څه پېښه شوې وي؟
**. ګيدړې به څه ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: ګيدړه او اوښ چېرته ولاړل؟
ځواب: پاليز ته.
۳. پوښتنه: پاليز کې يې څه وخوړل؟
ځواب: خټکي.
٤. ذهني پوښتنه: که مو ملګری په خطر کې وي، څه به کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بيا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکيب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ.

**موضوع:** زکات  **توری:** ز

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ز) غږ اورېدل.
۲. د (ز) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ د کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۱. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۲. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای: په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (زمری) دویم انځور (بزګر)
دریم انځور (مېز)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (بې وزلو) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **زکات** (هغه پیسې چې مالدار یې هر کال له خپله ماله غریبانو ته ورکوي)، **بې وزلو** (غریبانو)، **بنا** (اساس، بنسټ) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



زکات ز کات
زلزله زل ز له
نوروز نو روز
ضمیر ضـ میر
بې وزلو

زکات
زکات د اسلام یوه بنا ده
مسلمانان زکات ورکوي
زکات بې وزلو ته ورکوو
نوروز بې وزلو ته زکات
ورکړ

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک زکات ورکوي؟
ځواب: مسلمانان
۳. پوښتنه: نوروز چا ته زکات ورکړ؟
ځواب: بې وزلو ته.
٤. ذهني پوښتنه: که یو بې وزله کس ووینئ، څه به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** زکات **توری:** چ

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د **/چ/** غږ پېژندل.
۲. د (چ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اوریدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوې دي او که نه: دغه کلمې (**چرګ، چمن، ټال، مالوچ، مچۍ**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي
۴. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ:
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
۴. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني کلمه (دي) تدریس کړئ.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**زکات، بنا، بېوزله**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.



۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: زکات څه شی دی؟
ځواب: د اسلام یوه بنا ده.
۳. پوښتنه: زکات چا ته ورکوو؟
ځواب: بې وزلو ته.
۴. ذهني پوښتنه: ولې ضروري ده چې له بې وزله کسانو سره مرسته وکړو؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** چنار **توری:** چ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **/چ/** غږ پېژندل.
۲. د (چ) توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیارې (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وپېژنئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکې دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

لومړی انځور(چرګ) دویم انځور (مچې)دریم انځور(مچ)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکې دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (جوړوي، مه ولې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **چوغکه**(مرغۍ)، **غج غج** (د مرغیو آواز)، **چنار** (یو ډول ونه ده) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکې وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکې دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکې دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکې دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د




هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چمن څه شی لري؟
ځواب: چنار.
۳. پوښتنه: چنار ته څه شی راغی؟
ځواب: چوغکه.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک د مرغیو ځالې ورانوي، څه به ورته وایاست؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکې دې د (ز) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکې دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکې دې د (ز) توری په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ز، چ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ز، چ/ غږونو اورېدل.
۲. د (ز، چ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۱. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۲. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ښارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **بنا**، ۲. **ورکړ**، ۳. **چنار**، ٤. **جوړوي**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې هم له نورو سره د مرستې په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ش، غ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ش، غ**/ غږونو پېژندل.
۲. د (**ش، غ**) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توری پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږ یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي، په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د توري خارل، په کتابچه کې لیکل.

**۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکات د سر دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**بلوچ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **بـ / لوچ**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې د تمرین په کتاب



کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**مالوچ، کوچ، زکات، نوروز، ممیز، زلزله، وچ**).
۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې چا دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (چ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (چ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین وکړي.

**شپاړسمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** مسوولیت منل **توري:** ښ، ګ

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې باید زیار وباسي چې بریالي شي.

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ښ، ګ**/ غږونو اورېدل.
۲. د (**ښ، ګ**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**لټ، ګوډ، ښښتن، ښایسته، ګوزاره، شوق**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ښ، ګ) تورو له ښېو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای ولولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په دې وپوهوي چې د بریالي کېدو لپاره باید زیار او زحمت وباسي.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د کار شوق

د ښادي خان خره بیا له کاره ځان پټ کړی و. دلته لرې یې د ګلاب خان خر ولید چې په شوتله کې څري. د ښادي خان خر نژدې ورغی، ورته ویې ویل: بختوره؛ د شنې شوتلې په پټي کې دې مزې وکړې.



د ګلاب خان خره ورته وویل*: خود به مزې کوم. **لټ** نه یم. د **ښښتن** له کاره نه پټېږم. خپل کار په **شوق** او مینه کوم. نو ښښتن مې هم راباندې مهربان دی. درانه بارونه راباندې نه وړي. وهي ټکوي مې نه. ډېر ښه مې ساتي.**
د ښادي خان خره وویل: ډېر ښه سبق دې راکړ. مننه.
د ښادي خان خر اوس لټي نه کوي. خپل کار په پوره شوق سره کوي. ښښتن یې همورباندې مهربان شوی دی. ډېر ښه یې ساتي.

**موضوع:** د کار شوق  **توری:** ښ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ښ/ غږ پېژندل.
۲. د (ښ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ښار**، **قلم**، **ښکار**، **ښاپیرۍ**، **هلک**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
٥. عیني کلمه (وړي) تدریس کړئ.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**تر اورېدلو د مخه**

۱. د **لټ** (تنبل)، **څښتن** (صاحب)، **شوق** (مینه) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.



٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلي ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. څه به یې ویلي وي؟
**. تاسو څه فکر کوئ چې وروسته به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: د ښادي خان خر له څه شي پټ شوی و؟
ځواب: له کاره.
۳. پوښتنه: د ګلاب خان خر چېرته و؟
ځواب: د شوتلي په پټي کې.
٤. ذهني پوښتنه: دا ولې مهمه ده چې زیار او زحمت وباسو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** غاښ **توری:** ښ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ښ/ غږ اورېدل.
۲. د (ښ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۱. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۲. توری د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (ښار) دویم انځور (پښه)
درېیم انځور (پښې)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (ښاپېرۍ، شوي) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. د **کوچنی** (وړوکی)، **ښایسته** (ښکلی)، **روښان** (نوم دی) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



ښایسته ښا یسـ ته
پښتنه پښـ تـ نه
ښاپېرۍ شوي

غاښ

روښان د ښاپېرۍ کوچنی ورور دی
غاښونه یې راشنه شوي دي
غاښونه یې ښایسته دي
ښاپېرۍ له روښان سره لوبه کوي

۱۲

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د چا غاښونه شوي وو؟
ځواب: د روښان.
۳. پوښتنه: روښان د چا ورور دی؟
ځواب: د ښاپېرۍ.
٤. ذهني پوښتنه: څه باید وکړو چې غاښونه مو ښایسته او روغ پاتې شي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** غاښ  **توری:** گ

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د /گ/ غږ اوربدل.
۲. د (گ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اوربدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په گوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې **(گل، توپ، گام، گودر، ظریف، گېلاس)** وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ:
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو گوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **(کوچنی، ښایسته، روښان)** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په گډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د روښان غاښونه څنگه ښکاري؟
ځواب: ښایسته ښکاري.
۳. پوښتنه: ښاپېرۍ له چا سره لوبه کوي؟
ځواب: له روښان سره.
۴. ذهني پوښتنه: تاسو له خپل کوچني ورور یا کوچنۍ خور سره څه ډول لوبې کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع: د اونۍ تکرار    توری: ډ، خ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ډ، خ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ډ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **خوړله**، ۲. **ښه**، ۳. **خادر**، ٤. **کور**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

#### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې د امانت ساتلو په اړه دې یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو توري او کلمې دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

موضوع: د بیاکتنې او دوامدارۍ ارزونې ورځ **توري:** ژ، ځ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ژ، ځ/** غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**سرلوخ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **سر / لوخ**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**بلوخ، هډوکی، غوخ، بوخ، ګوډ، ډېوه، ډوډۍ**).
۳. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې راوغواړي او و دې ګوري چې دا فعالیت په ښه توګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ځ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ځ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**شلمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** زلزله **توري:** ړ، ق

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه خپل او د نورو احساسات آرام کړي.

**د اونۍ د زده‌کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ړ، ق/ غږونو اورېدل.
۲. د (ړ، ق) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**زلزله، ټکان، ژوبل، انګړ، ټېپي، روغتون**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ړ، ق) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مک ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي ته وښیي چې خپل او د نورو احساسات څنګه آرام کړي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.

- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## زلزله

ناڅاپه مېزونه ولړزېدل. یوه شاګرد چغې کړې: زلزله ده!
ښوونکي وویل: مه وارخطا کېږه!* مېز مه وښوراوه. که په رښتیا زلزله شي، څه به کوئ؟ ګورئ!
د زلزلې له لومړي **ټکان** سره به له کوټې وځئ. داسې ځای کې به درېږئ چې دېوال، ودانۍ، د برېښنا او تیلفون پایې نه وي چېرته چې د تیرو د ښوېدو خطر وي، دلته به نه درېږئ. پر سرونو به بالښت، د مکتب بکس یا بل شی نیسئ. که هېڅ شی نه و،** پر سر باندې به مو لاسونه نیسئ چې **ژوبل** نه شئ.



که د وتلو لار نه وه، تر مېزونو لاندې کښېنئ. د مېز پښې ټینګې ونیسئ. تر الماری، ښیښو او څراغونو لاندې مه درېږئ.

**موضوع:** زلزله **توری:** ږ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د /ږ/ غږ پېژندل.
۲. د (ږ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه دغه کلمې (**ږمنځ، ږلی، قلم، ږیره، کدو**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
٥. عیني کلمه (سپوږمۍ) تدریس کړئ.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **زلزله** (د ځمکې ټکان)، **ټکان** (ښوریدل)، **ژوبل** (زخمي) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




٤. زده کوونکي وراندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ښوونکي به نور څه ویلي وي؟
**. ستاسو په فکر، بیا به څه کوو؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: چا مېز وښوراوه؟
ځواب: ښوونکي.
۳. پوښتنه: د زلزلې له لومړي ټکان سره څه باید وکړو؟
ځواب: له کوټې باید ووځو.
٤. ذهني پوښتنه: که د زلزلې پر مهال وویرېږئ، څه باید وکړئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** زلزله **توري:** ږ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ږ/ږ غږ پېژندل.
۲. د (ږ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیارى (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
لومړی انځور (ږمنځ) دویم انځور (مېږی)
درېم انځور (یږ)
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (مه وېرېږئ، ونیسئ) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **چیغه**(ناره)، **وېرېدل**(ډارېدل)، **انګړ**(د کور حویلي) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: وږمه له چا سره ناسته وه؟
ځواب: له سپوږمۍ سره.
۳. پوښتنه: مور یې څه وویل؟
ځواب: مه وېرېږئ، بالښتونه پر سرونو باندې ونیسئ.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې زلزله وشي، تاسې به څه احساسوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** زلزله		**توری:** ق

### د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د /ق/ غږ پېژندل.
۲. د (ق) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه دغه کلمې (**قلم**، **قدیر**، **اخلاق**، **سبق**، **بوټ**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
۴. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. د **چیغه**(ناره)، **وېرېدل**(ډارېدل)، **انګړ**(د کور حویلي) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او بیا په یوازې ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ټول ولې انګړ ته راووتل؟
ځواب: زلزله شوه.
۳. پوښتنه: چا چیغه کړه؟
ځواب: سپوږمۍ.
۴. ذهني پوښتنه: که مو خور یا ورور ډېر وېرېدلي وي، څه به کوئ؟

### تکرار او کورنی دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنی دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** روغتون **توری:** ق

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ق/ غږ پېژندل.
۲. د (ق) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې سم ځواب ويل.
(د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره يوځای اړه غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې وښيئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، غږ او نوم يې و وايئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې وليکئ، په خپلو ګوتو يې تعقيب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرين په کتاب کې وليکئ.
لومړی انځور (قلم) دويم انځور (منقل)دريم انځور (زنبق)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقيقې)**

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکيب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عيني کلمې (لرګي، ټپي) تدريس کړئ.

**۳. د لوستلو دويم متن (۱۳ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د ترنيخ(تيشه). **ټپي** (زخمي)، **روغتون**(شفاخانه)، کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بيا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې يې استعمال تمرين کړي.
۳. د کيسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن يوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه يي او بيا په يوازې ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه د




هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: قيس څه کول؟
ځواب: لرګي يې ماتول.
۳. پوښتنه: څوک ټپي شول؟
ځواب: قيس.
٤. ذهني پوښتنه: که يو څوک ټپي شوی وي، څنګه يې ژر په بنه کولی شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بيا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

زده کوونکي دې د (ږ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ږ) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم يا پنسل سره تمرين وکړي.

موضوع: د اونۍ تکرار توري: ړ، ق

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ړ، ق/ غږونو پېژندل.
۲. د (ړ، ق) تورو لوستل او ليکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی د تصويرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره يوځای د کلمو په پيل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې ليکي، په گوته يې ښيي او غږونه يې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د ليکلو طريقه تکراروي: په هوا کې ليکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې ليکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنگه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بيا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. وېرېږئ، ۲. سرونو، ۳. لرگي ٤. روغتون.

### ۳. د دويم متن بيا لوستل (۵ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کيسه د څه شي په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې يوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه يې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي ليکل (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کيسو ته په کتو سره، خپلې کيسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وگوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې په دې اړه يوه کيسه جوړه کړي چې د زلزلې پر مهال به څنگه د خپلې ورې خور يا کوچني ورور وېره را کمه کړي. بيا دې په دې اړه يو رسم وکاږي او يو څو توري او کلمې دې ورسره وليکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کيسې نورو ته وايي، تاسو په ټولگي کې وگرځئ او له هغوی څخه د کيسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتيا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وگورئ، په اړه يې څو کلمې يا لنډه جمله وليکئ.

موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ
توري: ډ، خ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ډ، خ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ډ، خ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په گوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په گوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ۴. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**اتاق**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **اُ تاق**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر



وکړي او د هرې هجا توری دې د تمرین په کتاب کې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. ( **رازق، مشتاق، اخلاق، ورمه، سپوږمۍ، ورمېر، رېره**).
۳. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولگي کې وگرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
۴. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وگوري چې چا دا فعالیت په ښه توگه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره زیاته مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ق) توري بڼې ته په پوره دقت سره وگوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ق) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**یووېشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** وطنپالنه **توري:** ف، ڼ

### د اونۍ د زده‌کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ف، ڼ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ف، ڼ) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱۶ کلمو ترکیب او هجا کول.
۴. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**چلول**، **خرطوم**، **خدمت**، **کارتوني**، **تکره**، **ژوبڼ**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
۶. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ف، ڼ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې له نورو سره په ګډه کار کول څه ګټې لري.

### د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره وویشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي ګډ کار ته وهڅوي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

### د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

## ځنګل

ځنګل اور اخیستی و. لېوه، سورلنډۍ او ګیدړه وتښتېدل؛ څو نورو حیواناتو اوبه **چلولې** چې اور ووژني. فیل په خپل اوږده **خرطوم** له ډنډه اوبه اخیستې چې توتکۍ له پاسه پر اوبو ورتېره شوه. یو څاڅکی اوبه یې په خپلې ورې مښوکې ورپورته کړې. فیل ورته وویل: څه کوې؟



توتکۍ وویل: اور وژنم.
فیل وویل*: ستا په دې یوه څاڅکي اوبو به څه وشي؟
توتکۍ وویل: له څاڅکي څاڅکي دریاب جوړېږي. زما په وس همدومره دي. ځنګل زموږ ګډ کور دی. پر موږ یې حق دی چې** **خدمت** یې وکړو او ویې ساتو.
فیل وویل: رښتیا وایې. ټولو په ګډه اور مړ کړ او ځنګل یې وژغوره.

**موضوع:** ځنګل **توری:** ف

### د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د **/ف/** غږ پېژندل.
۲. د **(ف)** توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوې دي او که نه دغه کلمې (**فیل، کتاب، فاروق، قلم، هلک، فوټبال**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي.
۴. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
۴. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **چلول**(وړل)، **خرطوم**(د فیل په مخ کې یو اوږد غړی دی چې تنفس پرې، کوي اوبه پرې څښي او خوراکي مواد پرې را لېږدوي)، **خدمت**(خیر رسول، ګټور کارکول) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.



۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. فیل به څه ویلي وي؟
**. توتکۍ به بیا څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: ځنګل چې اور واخیست، کوم حیوانات وتښتېدل؟
ځواب: لېوه، سورلنډۍ او ګیدړه.
۳. پوښتنه: چا وویل چې له څاڅکي څاڅکي دریاب جوړېږي؟
ځواب: توتکۍ
۴. ذهني پوښتنه: کله مو له نورو سره په ګډه یو کار ترسره کړی دی؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** فوټبال  **توری:** ف

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ف/ غږ پېژندل.
۲. د (ف) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (فیل) دویم انځور (شفتالو)
درېیم انځور (لطیف)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. . عیني کلمې (کې، شي) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **کارټون** (د ماشومانو لپاره فلم)، **تکړه** (پیاوړی، غښتلی، نامي) **فکر** (سوچ) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: فرید څه شي وکوت؟
ځواب: کارټون فلم.
۳. پوښتنه: په کارټون فلم کې یې څه ولیدل؟
ځواب: فیل یې ولید چې فوټبال کوي.
٤. ذهني پوښتنه: فرید څنګه پوه شو چې باید له نورو ماشومانو سره په ګډه فوټبال وکړي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** فوټبال **توری:** ڼ

### د زده کړې هدفونه
۱. د کلمې په پیل کې د /ڼ/ غږ پېژندل.
۲. د (ڼ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه. دغه کلمې (**ښوونه، افغان، منه، بڼ، رڼا، ذره بین، شکوڼ**) وکاروئ.
۳- زده کوونکی دې خو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ. په هوا کې یې ولیکئ. په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)
۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**کارټون، تکره، فکر**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: فرید له څه شي سره مینه لرله؟
ځواب: له فوټبال سره.
۳. پوښتنه: فرید په څه شي کې تکړه شو؟
ځواب: په فوټبال کې.
۴. ذهني پوښتنه: کله چې تاسې په یوه ټیم کې کار کوئ او بیا بریالي شئ، څه احساس به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ژوبڼ **توری:** ڼ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ا**ڼ**/ غږ پېژندل.
۲. د (ڼ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې سم ځواب ويل.
(د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښيئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم يې و وايئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ. په هوا کې يې ولیکئ. په خپلو ګوتو يې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(شکوڼ)، دویم انځور (منه)، دریم انځور (ژوبڼ)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (تللې، وګرځېده) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ژوبڼ**(باغ وحش)، **شکوڼ**(د حیوان نوم دی)، **کارګر**(کارکوونکی) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ؛
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې يې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه يي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.


ړنا ړ نا تړکان تړ کان
منه مـ ـنه ژوبڼ ژو بڼ
تللې وګرځېده
ژوبڼ
ړنا ژوبڼ ته تللې وه
هغه په ژوبڼ کې وګرځېده
په ژوبڼ کې يې شکوڼ ولید
ړنا شکانړه ته منه ورواچوله
د ژوبڼ کارګر ورته وویل
ژوو ته څه مه وراچوه. هر ژوی خپل خواړه لري
موږ ورته خواړه ورکوو
۱۲۳

۲. پوښتنه: ړنا چېرته تللې وه؟
ځواب: ژوبڼ ته.
۳. پوښتنه: ړنا شکانړه ته څه شی ورواچاوه؟
ځواب: منه يې ورواچوله.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې له یو ځا سره مرسته کوو د هغه اړتیا ولې باید په پام کې ونیسو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ف) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ف) توری په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اوښی تکرار** **توري: ف، ڼ**

**د زده کړې موخې**

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ف، ڼ**/ غږونو پېژندل.
٢. د (**ف، ڼ**) تورو لوستل او لیکل.
٣. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ٨٠٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (٥ دقیقې)**

**١. د غږ او رېدل، د توري لوستل او لیکل (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
٢. ښوونکی توري پر تختې لیکي. په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

**٢. د خانه خالي جملو لوستل (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
٣. ځوابونه: ١. **کولي**، ٢. **فوټبال**، ٣. **ژوبڼ**، ٤. **مڼه**

**٣. د دویم متن بیا لوستل (٥ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.
٥. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.


١- فکر یې کاوه فوټبال به شي ____ (خورلي، کولي)
٢- فیل په قلم کې ____ کاوه (فوټبال، کتاب)
٣- زیبا ____ ته تللې وه (شکوړ، ژوبڼ)
٤- زیبا شکاله ته ____ ور واچوله (ژوبڼ، مڼه)
ژوبڼ
١٦٥

**٤. نوښتي لیکل (١٠ دقیقې)**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اوښی کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
٢. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
٣. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې له نورو سره د مرستې په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
٥. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

**بیا کتنه او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)**

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ٣ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا یوه جمله ولیکئ.

موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ     توري: ړ، ق

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ، ق/ غږونو پېژندل.
٢. د (ړ، ق) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ٩٠٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (٥ دقیقې)**

**١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (١٠ دقیقې)**

١. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه معلوموي.
٢. ښوونکی توري پر تختې لیکي. په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

**٢. د کلمو لوستل (١٠ دقیقې)**

١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
٢. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې په انفرادي ډول ولولي.

**٣. د دویم متن بیا لوستل (٥دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

١.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.
٥. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.

**٤. املا (١٠ دقیقې)**

١. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
٢. هغوی ته وواياست چې د **(ترکاڼ)** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **تر/ کاڼ**. دا کلمه (٢) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. درېم پړاو په دغو کلمو



سره تکرار کړئ. **(ځدراڼ، شکوڼ، کټ بوڼ، فوټبال، فرید، شفتالو، شریف)**.
٣. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغو تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت څنګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)**

١. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ٣ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (٣٥ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ڼ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (٥دقیقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ڼ) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**دوه وېشته اونۍ (تکرار)** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** رښتیا ویل **توري:** ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**پوول**، **داړل**، **نتیجه**، **کتابتون**، **لوند**، **وجه**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ژ،ځ،ډ، ځ، ړ،ق، ف، ڼ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې د رښتیا ویلو اهمیت څه دی.

## د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې د اونۍ په لوستونو کې د رښتیا ویلو پر ګټو او ښېګڼو تمرکز وکړي او زده کوونکي دې ورته وهڅوي.
- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

### دروغجن

یو شپون و. هره ورځ به یې د غره په لمن کې رمه **پووله**. یوه ورځ یې هسې چغې کړې چې هلئ، لېوه راغی. هلئ چې مېږې **داړي**!

کلیوال راووتل. په منډو یې ځانونه وررسول. ګوري چې لېوه نشته.



شپون په درواغو وویل چې* لېوه راغلی و؛ خو ستاسو له ډاره وتښتېد. بله ورځ یې بیا نارې کړې چې لېوه دی، لېوه دی!

بیا خلک ورغلل. خو لېوه نه و.

بله ورځ، په رښتیا لېوان راغلل. ده ډېرې نارې سورې وکړې؛** خو څوک یې مرستې ته ورنغلل. کلیوالو فکر وکړ چې دی به هسې نارې وهي. لېوانو څو مېږې وخوړې.

شپانه د خپلو درواغو **نتیجه** ولیده.

**موضوع:** دروغجن **توری:** ژ، ځ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د /ژ، ځ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او غږونه یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوي دي او که نه. دغه کلمې (ږلی، ځنګل، قلم، کدو، ژرنده، ژمی) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږونو پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ. غږونه او نومونه یې و وایئ.
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ. په هوا کې یې ولیکئ. په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

### له اورېدلو څخه مخکې

۱. د **پوول** (څرول)، **داړل** (خوړل)، **نتیجه** (پایله، حاصل) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



### د اورېدلو پر مهال

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. شپانه به څه ویلي وي؟
**. بیا به څه شوي وي؟

### له اورېدلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: شپانه رمه چېرته پووله؟
ځواب: د غره په لمن کې.
۳. پوښتنه: کله چې لېوان په رښتیا راغلل، خلک ولې د شپانه مرستې ته ورنغلل؟
ځواب: کلیوالو فکر وکړ چې دی به هسې ناري وهي.
٤. ذهني پوښتنه: دروغ ویل څه تاوان لري؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** رښتیا ویل  **توري:** ډ، خ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ډ، خ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ډ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ. غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو د غږونو له لوستلو سره یوځای یې په هوا کې ولیکئ. په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(ډوډی)، دویم انځور(هډوکی)، دریم انځور (ډنډ)
لومړی انځور(خا)، دویم انځور(خمڅې)، دریم انځور (سمڅ)

### ۲. د تورو او کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **کتابتون** (هغه ځای چې کتابونه په کې ساتل کېږي)، **لوند** (خیشت)، **مشر** (مسؤول) د کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.


رښتیا ویل
ډیوه کتابتون ته تللې وه
اځک هم ورسره و. ډیوې یو کتاب
راواخیست. کتاب ورڅخه لوند شو
اځک ویل غږ مه کوه. خو ډیوې
د کتابتون مشر ته وویل
دا کتاب را څخه لوند شو
هغه ورېل آفرین! رښتیا ویل ښه کار دی
۱۲۸

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ډیوه چېرته تللې وه؟
ځواب: کتابتون ته.
۳. پوښتنه: د کتابتون مشر ولې ډیوې ته آفرین وویل؟
ځواب: ځکه چې رښتیا یې ویلي وو.
٤. ذهني پوښتنه: که ډیوې دروغ ویلي وای، څه به شوي وای؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** رښتیا ویل  **توری:** ړ، ق

### د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د /ړ، ق/ غږونو پېژندل.
۲. د (ړ، ق) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**ځنګل، ړمنځ، ځان، ړیره، منګی، قلم، پیاله، قدیم، لایق**) وګاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږونو پیل شوي وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ:
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. د **کتابتون، لوند، مشر** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او بیا په انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک کتابتون ته تللي وه؟
ځواب: ډیوه.
۳. پوښتنه: له ډیوې سره نور څوک وو؟
ځواب: اشک.
۴. ذهني پوښتنه: ولې باید صادق او رښتیني وو؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** رښتینولي    **توری:** ف، ڼ

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ف**، **ڼ**/ غږونو پېژندل.
۲. د (**ف**، **ڼ**) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نویو تورو سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او د زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(فیل)، دویم انځور(شفتالو)، دریم انځور (لطیف)
لومړی انځور(شکوڼ)، دویم انځور(مڼه)، دریم انځور (ژوبڼ)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**آزموینه** = امتحان، **وجه**= سبب، **بېړه**= تلوار، تادي) کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او بیا په انفرادي ډول ولولي.


فرید / ف رید
شفتالو / شف تا لو
رڼا / ر ڼا
ژوبڼ / ژو بڼ

فرید او آزموینه

رڼا د فرید مشره خور ده. رڼا په ښو نومرو کامیابه شوه، خو د فرید مزه نه وه. رڼا ووېل: ستا خو درسونه زده وو. ستا د کمو نومرو وجه څه ده؟
فرید ووېل: بېړه مې وکړه. ځوابونه راته ګډوډ شول.
رڼا ووېل: آفرین! تل رښتیا وایه.

۱۴۰

## له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک په ښو نومرو کامیابه وه؟
ځواب: رڼا.
۳. پوښتنه: د چا مزه نه وه؟
ځواب: د فرید.
٤. ذهني پوښتنه: که یو څوک کوښښ نه کوي، نتیجه به یې څه وي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ژ،ځ،ډ،څ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ژ،ځ،ډ،څ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ژ، ځ، ډ، خ**


۱- د هوړي يو ____ راواخيست (ښوونځی، کتاب)
۲- دا کتاب راڅخه ____ شو (لوند، وخوړل)
۳- زيا د فريد ____ خور ده (نومړه، مشره)
۴- ستا څو ____ زده وو (درسونه، آزموينه)
فريد او آزموينه

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ژ، ځ، ډ، خ) غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ، ډ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **کتاب**، ۲. **لوند**، ۳. **مشره**، ۴. **درسونه**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.
۵. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.

### ۴. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا درېیو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې د ربښتیا ویلو په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ړ، ق، ف، ڼ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ړ، ق، ف، ڼ**/ غږونو پیژندل.
۲. د (**ړ، ق، ف، ڼ**) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي. په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي، په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوته د تورو ځارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱.**چیغه**، ۲.**ترنځ**، ۳.**ژوبڼ**، ٤. **فوټبال**.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.
٥. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**ړمنځ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **ړ / منځ**. دا کلمه (۲) هجاوې



لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**قلم، ورمېږ، سپوږمی، ړیره، قیس، لایق، اخلاق** ).
۳. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت څنګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې او خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ړ،ق، ف، ڼ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ړ،ق، ف، ڼ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**درویشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** زغم **توري:** ث، ح

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ث، ح**/ غږونو پېژندل.
۲. د (**ث، ح**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**زغم، ټینګ، غوسه، ګالل، ناخاپه، حوصله**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ث، ح) تورو له بڼو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه سختۍ وزغمي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته وښیي چې څنګه باید سختۍ او مشکلات وزغمي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## زغم

ښوونکي د زغم په هکله خبرې کولې. پوښتنه یې وکړه: د **زغم** په معنا څوک پوهېږي؟
غیاث وویل: ! زغم، صبر او حوصلې ته وایي.



ثریا وویل: زغم دې ته وایي چې انسان سختیو ته **ټینګ** شي.
ښوونکي وویل:* آفرین! د دواړو خبرې سمې دي. زه به یې مثال درته ووایم. که کوم ملګری مو درته **غوسه** وي او تاسې ورته حوصله وکړئ نو** وروسته به هغه پښېمانه شي. ملګرتیا به مو خرابه نه شي. خو که تاسې زغم ونه لرئ، خبره به مو شخړې ته ورسېږي. وروسته به ارمان کوئ. یا که څوک د درس ویلو سختۍ وزغمي، سبا به لوی انسان ور څخه جوړ شي. خیر به یې ټولو ته ورسېږي.

**موضوع:** زغم **توری:** ث

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل کې د /ث/ غږ پېژندل.
۲. د (ث) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره وپېژنئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه. دغه کلمې (**ثریا، ثمر، مثه، ثابت، کدو**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
٥. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یې او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یې او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)**

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **زغم** (صبر)، **ټینګ** (کلک)، **غوسه** (قهر) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ښوونکي به څه ویلي وي؟
**. نو څه به وشي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: غیاث څه وویل؟
ځواب: زغم، صبر او حوصلې ته وایي.
۳. پوښتنه: ثریا څه وویل؟
ځواب: زغم دې ته وایي چې انسان سختیو ته ټینګ شي.
٤. ذهني پوښتنه: موږ ولې باید د نورو په مقابل کې حوصله وکړو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** وارث او غیاث  **توری:** ث

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ث/ غږ پېژندل.
۲. د (ث) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای یې په هوا کې ولیکئ. په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (ثریا) دویم انځور (حدیثه)
درېیم انځور (مثلث)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (کریکټ، پسې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **ناڅاپه** (نابره، بې خبره)، **کرنګ** (د ښیښې د ماتېدو آواز) **بښنه** (بخشش) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



ثواب — ثـ واب
ثریا — ثـ ر یا
کوثر — کو ثر
مثلث — مـ ثـ لث
کریکټ — پسې

وارث او غیاث

وارث په کوټه کې و. ناڅاپه کرنګ شو. د کریکټ توپ ښیښه ماته کړه. وارث په غوسه شو.
غیاث په توپ پسې راغی.
غیاث ورېل: بښنه غواړم.
ښه کار و نه شو. د وارث غوسه سړه شوه. ورېې وېل: خیر دی، خو بیا پام کوه.

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: وارث چېرته و؟
ځواب: په کوټه کې.
۳. پوښتنه: څه شي ښیښه ماته کړه؟
ځواب: د کریکټ توپ.
٤. ذهني پوښتنه: که مو کوم ملګري ستاسو یو شی خراب کړی وي، څه به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** وارث او غیاث **توري:** ح

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ح/ غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه: دغه کلمې (**حاجی**، **حج**، **حال**، **مال**، **حمید**، **حلوا**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوي لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړی متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. **دناخاپه**(نابېره، بې خبره)، **غوسه** (قهر) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او بیا په یوازې ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د وارث غوسه څنګه سړه شوه؟
ځواب: په دې چې غیاث ښښه وغوښته.
۳. پوښتنه: غیاث څه وویل؟
ځواب: ښښنه غواړم. ښه کار ونه شو.
۴. ذهني پوښتنه: دا ولې مهمه ده چې له نورو څخه ښښنه وغواړو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** زغمل　　　**توری:** ح

## د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **/ح/** غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)
۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وپېژنئ. لومړی انځور (حج) دویم انځور (تحفه) درېیم انځور (تسبیح)
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ. په هوا کې یې ولیکئ. په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)
۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (لرې، ټولګي) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. د **ګالل** (زغمل)، **حوصله** (صبر کول، زغم) **واوښت** (تېر شو) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د




هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: حامد د چا ټولګیوال و؟
ځواب: د حبیبې.
۳. پوښتنه: ښوونځی څومره لرې و؟
ځواب: خورا لرې و.
٤. ذهني پوښتنه: څوک چې سختۍ زغمي، څه ګټه به وکړي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)
زده کوونکي دې د (ث) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکې قلم سره یې د کرسې خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)
- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ث) توری په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار      توري: ث، ح**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ث، ح/ غږونو پېژندل.
۲. د (ث، ح) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: **۱.کوټه، ۲. راغی، ۳.لرې، ٤.لاره .**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟
یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

#### د لوستلو پر مهال

۱ .زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.
۵. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.




### ٤.نوښتي لیکل (۱۰دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې د سختیو د زغملو په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ او په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارۍ ارزونې ورځ** **توري:** ف، ڼ

## د زده‌کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **/ف، ڼ/** غږونو پیژندل.
۲. د **(ف، ڼ)** تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۰٪)

## د تیر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده‌کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده‌کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده‌کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده‌کوونکي دې متن په جوړه یې ډول ولولي.
۵. زده‌کوونکي دې متن پخپله ولولي.

### ٤. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د **(فتاح)** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **فـ تاح**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **(جراح، نکاح، فلاح، وارث، مثلث، ثواب، ثریا)**.



۳. کله چې زده‌کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده‌کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده‌کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده‌کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت چا ښه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

## د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ح) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ح) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**خلورویشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** هڅه **توري:** ذ، ظ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ذ، ظ**/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ذ، ظ**) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د (**سپما، تنګسه، قرض، تکرار، حافظ، زیار**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ذ، ظ) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه د راتلونکي لپاره پلان جوړ کړي او عملي یې کړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړي یادداشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای و لولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي وهڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې څو کلمې او یا څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د راتلونکي په اړه فکر وکړي او ځانونو ته پلان جوړ کړي.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## سپما

مېږۍ کور ته راغی. پر دېوال یې کاغذ ولید. پر کاغذ لیکل شوي وو.
مېږیه وروره! ډېره درنه شرمېږم. دوې ورځې وشوې چې بچې مې وږي دي. اوږی مې **سپما** ونه کړه. اوس چې ژمی دی، **تنګسه** ده. خواړه نه پیدا کېږي. مخامخ مې درته نه شو ویلی. هیله ده چې لږ څه غله دانه **قرض** راکړې. په درنښت



ستا ګاونډۍ بلبله*
مېږي له واره د بلبلې کور ته غله دانه ورووړه. پر کاغذ یې ورته ولیکل: ګرانې بلبلې!** خوا دې مه بدوه. دا ډېره ښه خبره ده چې د وخت او سپما په قدر وپوهېدې.
په درناوي
ستا ګاونډی مېږی

**موضوع:** سپما  **توری:** ذ

### د زده‌کړې موخې

١. د کلمو په پیل کې د /ذ/ غږ پېژندل.
٢. د (ذ) توري لوستل او لیکل.
٣. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ٨٠٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل. (د سموالي معیار ٨٠٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (٥ دقیقې)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (١٠ دقیقې)

١. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده‌کوونکو سره راوښیئ.
٢. ښوونکی کلمې وایي او زده‌کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوې دي او که نه، دغه کلمې (**ذره‌بین، ذاکره، زده کوونکی، ذاکر، شاذیه، ذکر، آذان**) وګاروئ.
٣- زده‌کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي.
١. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ:
٢. توری له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ٢. د کلمو او جملو لوستل (١٢ دقیقې)

١. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړی کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده‌کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
٣. لومړی جمله پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده‌کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ٣. د اورېدلو فعالیت (١٣ دقیقې)

**له اورېدلو څخه مخکې**

١. د **سپما**(پس انداز)، **تنګسه**(سختي، نیستي، سخت حالت)، **قرض** (پور) کلمو په اړه بحث وکړئ:
٢. بیا له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
٣. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د اورېدلو پر مهال**

١. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
٢. د لوستلو پر مهال، له زده‌کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ستاسو په فکر مېږي به څه کړي وي؟
**. مېږي به ورته څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

١. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
٢. پوښتنه: مېږي ته چا پر دېوال کاغذ لګولی و؟
ځواب: بلبلې.
٣. پوښتنه: بلبلې له مېږي څخه څه غوښتي وو؟
ځواب: غله دانه.
٤. ذهني پوښتنه: دا ولې مهمه ده چې د راتلونکې لپاره پلان جوړ کړو؟

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. له زده‌کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ٣ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** املا **توری:** ذ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ذ/ غږ پېژندل.
۲. د (ذ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. توری د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (ذره بین) دویم انځور (تذکره)
درېیم انځور (کاغذ)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (کبرې، نذیرې) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **املا** (دکلمو سم لیکل)، ، **تکرار** (یو کار په بیا بیا ترسره کول) **لالا** (مشر ورور) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.


ذره بین، ذ ره بین، نذیر، ن ذیر، کاغذ، کا غذ، ذاکر، ذا کر
کبرې، نذیرې

املا

نذیر وویل: املا مې نه ښه کېږي. څه وکړم؟ ذاکرې ورته وویل: غم مه کوه، قلم او کاغذ راواخله
هره کلمه بیا بیا لیکه
املا په تکرار ښه کېږي
مور یې وویل: ذاکره ښه وایي
املا په بیا بیا لیکلو ښه کېږي.
۱۷۰

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: نذیر څه وویل؟
ځواب: املا مې نه ښه کېږي، څه وکړم؟
۳. پوښتنه: چا نذیر ته وویل: غم مه کوه؟
ځواب: ذاکرې ورته وویل.
٤. ذهني پوښتنه: نذیر څه وکړي چې املا یې ښه شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** املا　　**توری:** ظ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د **/ظ/** غږ پېژندل او له /ذ/ څخه يې په توپیر پوهېدل.
۲. د (**ظ**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ يې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**ظاهره، حفیظ، منظره، حافظ، ظریفه، ظریف**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم يې و وایئ:
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې ولیکئ، په خپلو ګوتو يې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې يې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره يې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌يي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**تکرار** (په بیا بیا يو کار کول)، **املا** (د کلمو سم لیکل)، **لالا** (مشر ورور) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې يې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن يوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌يي او بیا په انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چا وویل چې املا مې نه ښه کېږي؟
ځواب: نذیر.
۳. پوښتنه: مور يې څه وویل؟
ځواب: ذاکره ښه وايي، املا په بیا بیا لیکلو ښه کېږي.
۴. ذهني پوښتنه: څنګه کولی شئ په یوه کار کې تکړه شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** زيار ايستل  **توری:** ظ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د (**ظ**) غږ پېژندل او له /ذ/ څخه يې په توپير پوهېدل.
۲. د (**ظ**) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې سم ځواب ويل.
(د سموالي معيار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره يوځای اړه غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې ونښيئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، غږ او نوم يې و وايئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې يې وليکئ، په خپلو ګوتو يې تعقيب کړئ او زده کوونکې دې يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
لومړی انځور (ظاهره)، دويم انځور(منظره)، دريم انځور (حفيظ)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقيقې)**

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکيب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه‌يي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو دويم متن (۱۳ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **حافظ** (څوک چې قرآن کريم يې په يادو زده وي)، **حفظ** (له ياد زده کول)، **زيار** (زحمت، خواري) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بيا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې يې استعمال تمرين کړي.
۳. د کيسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکي دې متن يوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌يي او بيا په انفرادي ډول ولولي.


ظاهره ظا هر محفوظ محـ فو ظ
منظره مـنـ ظـ ره حافظ حا فظ
زيار ايستل
حفيظي خپل ورور محفوظ ته وويل: درسونه څنګه زده کړم؟
محفوظ د قرآن شريف حافظ و. هغه ورته وويل: ما قرآن شريف په زيار حفظ کړی.
ته هم زحمت وباسه
درسونه دې بيا بيا ولوله
حفيظي د ورور خبره ومنله
۱۳۱

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کيسې په اړه د هغوی وړاندوينه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک د قرآن شريف حافظ و؟
ځواب: محفوظ.
۳. پوښتنه: حفيظي محفوظ ته څه وويل؟
ځواب: ويې ويل: درسونه څنګه زده کړم؟
٤. ذهني پوښتنه: څنګه کولی شئ چې په راتلونکي کې په درسونو کې تکړه شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بيا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

زده کوونکې دې د (ذ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

- ښوونکې دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکې دې د (ذ) توري په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ذ، ظ**

### د زده‌کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ذ، ظ/** غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د **(ذ، ظ)** تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده‌کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده‌کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې لیکل.

### د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده‌کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **راوخله ۲. لیکلو ۳. حافظ ٤. زیار**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

#### د لوستلو پر مهال

۱.زده‌کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده‌کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده‌کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
٥. زده‌کوونکي دې پخپله متن ولولي.




### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې د راتلونکې لپاره د پلان جوړولو په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
٥. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده‌کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري: ث، ح**

### د زده‌کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ث، ح/ غږونو پېژندل.
۲. د (ث، ح) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده‌کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده‌کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ښارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده‌کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده‌کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده‌کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ۴. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**محفوظ**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **محـ/ ـفوظ**. دا کلمه (**۲**) هجاوې لري. زده‌کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. درېم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**حفاظ، الفاظ، لحاظ، نذیر، کاغذ، ذاکر، ذره بین**).
۳. کله چې زده‌کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده‌کوونکي دې وڅاري.
۴. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده‌کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده‌کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت چا ښه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ظ) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ظ) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**پنځه ويشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** لوبه **توري:** ص، ض

## د اونۍ د زده کړې موخې

١. د کلمو په پيل، منځ او پای کې د *ص، ض/* غږونو اورېدل.
٢. د (<u>ص، ض</u>) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
٣. له نوو تورو سره د <u>١٦</u> کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
٥. د (**مسابقه، بخت، ټګي، غورځول، مُدير، پام**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
٨. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
٩. زده کوونکي د (ص، ض) تورو له بنيو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ يې ښايسته وليکي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې څنګه د خلکو تر منځ لانجې هوارې کړي.

## د دې اونۍ لپاره ځانګړې يادداشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بيان کړئ.
- يوه کلمه د لاسونو په حرکتونو سره ووېشئ او بيا يې ترکيب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب ( مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کيسې يو پاراګراف و لولئ، بيا يې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بيا دې زده کوونکي په خپل منځ کې يو ځای و لولي او وروسته دې يو زده کوونکی په يوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې يو انځور رسم او په هکله يې ځو کلمې او ځو لنډې جملې وليکي.
- ښوونکی زده کوونکي وپوهوي چې څنګه دې د خلکو ترمنځ لانجې هوارې کړي.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**عيني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عيني کلمې پر تختې وليکي، په زده کوونکو دې يې تکرار کړي چې له شکل سره يې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وويل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووايي.

## د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

### لوبه

موږ د ښوونځي په ميدان کې فوټبال کاوه. يوه ورځ مو د بر کلي له هلکانو سره **مسابقه** وه، خو موږ وبايلله ټول خفه وو. منصور وويل چې **بخت** مو خراب و.



نصير وويل: چې **ټګي** يې راسره وکړه.
د سپورت ښوونکي وويل:* خبره د ټګۍ برګۍ يا د بخت د خرابۍ نه ده. دوی ښه تمرين کړی و. هم يې ښه دفاع کوله او هم يې ښه بريد کاوه.
د سپورټ ښوونکي د فوټبال چلونه راوښودل. ډېر تمرين مو وکړ. ** موږ ښه تکړه شوو. مياشت وروسته چې مو د برکلي له زده کوونکو سره بيا لوبه وکړه دا ځل مو ترې وګټله.

**موضوع:** لوبه  **توري:** ص

## د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د *ص/* غږ پېژندل.
۲. د (**ص**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**صابون، صابره، سابه، صبر، سبا**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **مسابقه** (سیالي)، **تېګې** (غلطي، درغلي)، **بخت** (طالع، قسمت) کلمو د معنا په اړه له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ښوونکې به څه ویلي وي؟
**. بیا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: مسابقه لومړی ځل چا وګټله؟
ځواب: د بر کلي هلکانو.
۳. پوښتنه: د بر کلي شاګردانو لوبه ولې وګټله؟
ځواب: ښه تمرین یې کړی و. ښه دفاع او ښه برید یې کاوه.
٤. ذهني پوښتنه: څنګه کولی شئ د یوې ستونزې علت پیدا کړئ خو پرته له دې چې بل څوک ملامت کړئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** لوبې  **توری:** ص

## د زده‌کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د *ص* غږ پېژندل.
۲. د (**ص**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې سم ځواب ویل.
(د سموالي معيار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده‌کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم يې و وایئ.
۳. توری د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره يې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(صابون) دویم انځور(نصیر) دریم انځور(مخلص)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې دا کلمې په جوړه‌يي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (ولوېد) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**لوبې**، **تکلیف**، **پام**) کلمو د معنا په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې يې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



صابون صا بون | صادق صا دق | منصور من صور
نصیر ن صیر | مُخلص مُخ لص

ولوېد

لوبه

صابر او ملګرو يې لوبه کوله
منصور توپ ووهه
توپ د نصیر په باغ کې ولوېد
منصور توپ راوړ
صابر وويل: ملګرو! له توپ
سره به پام کوو
ګړي به يې نه غورځوو. چا ته به
تکلیف نه ورکوو. ملګرو يې خبره ومنله

۱۳۲

## د لوستلو پر مهال

۱. زده‌کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده‌کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې متن په جوړه‌يي او انفرادي ډول ولولي.

## له لوستلو وروسته

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چا لوبه کوله؟
ځواب: صابر او ملګرو يې.
۳. پوښتنه: توپ چېرته ولوېد؟
ځواب: د نصیر په باغ کې.
٤. ذهني پوښتنه: د لوبې په وخت کې څه باید وکړو چې چا ته تکلیف ونه رسېږي؟

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** لوبې　　**توری:** ض

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ض/ غږ پېژندل.
۲. د (ض) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**ضابط، ضیا، زمری، ظریف**) وکاروئ.
۳. زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
٤. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**تکلیف، پام، ملګری**) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چا توپ بېرته راوړ؟
ځواب: منصور.
۳. پوښتنه: صابر څه وویل؟
ځواب: ملګرو! له توپ سره به پام کوو.
۴. ذهني پوښتنه: که نصیر خپه شوی وای، لانجه به خنګه هواره شوې وای؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.



**موضوع:** د لوبو میدان  **توري:** ض

### د زده‌کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ض**/ غږ پېژندل.
۲. د (**ض**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده‌کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښيئ.
۱. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۲. د توري غږ له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.
لومړی انځور(ظابط) دویم انځور(فضل) دریم انځور(فایض)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**میدان**(ډګر، ډاګ)، **مُدیر** (د اداري مشر)، **ډاډه**(مطمین) کلمو د معنا په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده‌کوونکي دې متن په جوړه‌یي او بیا په انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.


۲۵ اونۍ ۴ لوست
ضابط ضا بط
فیضان فیـ ضان
فیاض فیا ض
فایض فا یض
د لوبو میدان
راضیه او رضوان په لوبو بوخت وو. راضیه ولوېده.
مرضیه اُستاذه وزغله. راضیه یې
راپورته کړه.
بیا یې مدیر ته وویل:
د لوبو میدان سم نه دی
باید هوار شي. مدیر کارګران
راوستل. کارګرانو میدان هوار کړ.
اوس شاګردان په ډاډه زړه لوبې
کوي.
۱۴۸

۲. پوښتنه: څوک په لوبو بوخت وو؟
ځواب: راضیه او رضوان.
۳. پوښتنه: څوک ولوېدل؟
ځواب: راضیه ولوېده.
٤. ذهني پوښتنه: که په یوه شي کې ستونزه وي، تاسې به یې څنګه حل کړئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ص) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ص) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار توری: ص، ض**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د *ص، ض* غږونو پېژندل.
۲. د (**ص، ض**) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **توپ** ، ۲. **راوړ**، ۳. **ولوېده**، ۴. **ډاډه**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

#### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.


۱- منصور ____ وواهه (میدان، توپ)
۲- منصور توپ ____ (راوړ، ورک)
۳- راضیه ____ (ولوېده، لوبه)
۴- شاګردان په ____ زړه لوبې کوي (ډاډه، کتاب)
د لوبو میدان
۱۴۹

### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې له نورو سره د خپلې لانجې د هوارولو په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** **توري:** ذ، ظ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **ذ، ظ** غږونو پېژندل.
۲. د **(ذ، ظ)** تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار۹۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په اړه کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د کلمو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یې او بیا دې یې په انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

#### د لوستلو پر مهال

۱.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
۴. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ۴. املا (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به څینې کلمې لیکې.
۲. هغوی ته ووایاست چې د **(غرض)** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **غـ / رض**. دا کلمه (۲) هجاوې




لري. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توري دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **(حوض، مرض، فیاض، منصور، صابر، صادق، نصیر)**.
۳. کله چې زده کوونکو په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت څنګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ض) توري بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.

- زده کوونکي دې د (ض) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**شپږویشتمه اونۍ** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** د خبرو کولو ادبونه **توري:** ط، ع، ص، ض

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ط، ع، ص، ض/ غږونو اورېدل.
۲. د (ط، ع، ص، ض) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د (**ادب**، **یوه ساه**، **ځانګه**، **لالهانه ده**، **عینکې**، **لید**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ط، ع، ص، ض) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې د خبرو اترو پر مهال د بل خبرو ته غوږ ونیسي او مناسب ځواب ورکړي.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یاد داشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- یوه کلمه د لاسونو په حرکت سره ووېشئ او بیا یې ترکیب کړئ، د بېلګې په ډول: مکتب (مکـ ـتب)
- په مناسب غږ د کیسې یو پاراګراف و لولئ، بیا یې له زده کوونکو سره په ګډه و لولئ، بیا دې یې زده کوونکي په خپل منځ کې یو ځای ولولي او وروسته دې یې یو زده کوونکی په یوازې توګه و لولي.
- زده کوونکي و هڅوئ چې یو انځور رسم او په هکله یې خو کلمې او څو لنډې جملې ولیکي.
- ښوونکی دې د خبرو کولو د ادبونو په ګټو تمرکز وکړي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.
- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د خبرو کولو ادبونه

طوطي او طاووس په ځنګله کې اوسېدل. طاووس د طوطي کور ته راغی. طاووس له طوطي سره خبرې کولې. ویې ویل: ها بله ورځ مې ښارو ولیده.



د طاووس خبرې لا خلاصې نه وې چې* د طوطي بچي یې په خبرو کې ورولوېد او په **یوه ساه** یې وویل: ما هم ښارو ولیده. د هغې ونې پر **ځانګه** ناسته وه. بیا والوته.

طاووس چې ولاړ، طوطي خپلو بچیانو ته وویل: ګورئ! کله چې څوک خبرې کوي**، ورته غوږ شئ. د بل په خبرو کې مه ورلوېږئ. پرېږدئ چې هغه خپله خبره خلاصه کړي، بیا تاسې خبرې وکړئ.

**موضوع:** د خبرو کولو ادبونه **توری:** ط

### د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د **/ط/** غږ پېژندل.
۲. د (**ط**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوې دي او که نه، دغه کلمې (**طوطي، طاووس، مور، ظاهر، پلار**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوې وي.
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۵. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۵. عیني کلمه (ګنډي) تدریس کړئ.

### ۳. د اورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

#### له اورېدلو څخه مخکې

۱. د **ادب** (ښه کارونه)، **یوه ساه** (په تېزۍ سره پرلپسې توګه)، **ځانګه** (ښاخ) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.




٤. زده کوونکي وراندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

#### د اورېدلو پر مهال

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. څه به شوي وي؟
**. طوطي به څه ویلي وي؟

#### له اورېدلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: طاووس د چا کور ته راغی؟
ځواب: د طوطي کور ته.
۳. پوښتنه: څوک د طاووس په خبرو کې ورولوېدل؟
ځواب: د طوطي بچې.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په فکر، د خبرو کولو پر مهال باید کومو نورو ټکو ته هم پام وکړو؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** طاووس **توری:** ط

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ط/ غږ پېژندل.
۲. د (ط) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري د غږ له لوستلو سره یوځای په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور (طوطي) دویم انځور (سطل)
دریم انځور (ضابط)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (طوطي) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **الوتل** (په هوا کېدل)، **حق** (منل شوې برخه)، **ځواب** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: طوطي له چا سره خبرې کولې؟
ځواب: له طاووس سره.
۳. پوښتنه: چا پوښتنه وکړه؟
ځواب: د طاووس لور.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک ستاسو پوښتنې ته سم ځواب درنه کړي، څه احساس به کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** طاووس **توری:** ع

## د زده کړې هدفونه

۱. د کلمې په پیل کې د /ع/ غږ پېژندل.
۲. د (ع) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

## د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په اړه بحث وکړئ او لومړی غږ یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**عینکې، علم، طاهر، عدل، ظریف، عقاب**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې خو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
۱. توری پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۲. توری له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د **حق، پوښتنه** (سوال)، **الوتل** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



۲۶ اونۍ ۳ لوست

ع ع ع

| د قاع | دِفاع | مُخ تَ رِع | مُختَرِع |
| --- | --- | --- | --- |
| و داع | وِداع | اِخ تِ راع | اِختراع |

۱- ضابط مُختَرِع دی.

۲- هغه ماشین اِختراع کړی

طاووس

۱۵۳

## د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او بیا په انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: د طاووس لور څه پوښتنه وکړه؟
ځواب: پلاره! چرګه الوتلی نه شي؟
۳. پوښتنه: طاووس څه وویل؟
ځواب: طاووس وویل: نه.
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو په فکر د پوښتنې کولو او ځواب ویلو ګټې څه دي؟

## تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره نوی غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** عقاب **توري:** ع

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ع/ غږ پېژندل.
۲. د (ع) توري لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاري (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، غږ او نوم یې و وایئ.
۳. د توري غږ له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(عینکې)دویم انځور (تعلیم) دریم انځور (شمع)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (عینکې، کړې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو دویم متن

**(۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **لید** (نظر)، **لالهانده**(سرګردانه)، **عینکې**، (چشمې) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د




هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: پړانګ په څه شي پسې ګرځېده؟
ځواب: په عینکو پسې.
۳. پوښتنه: عینکې چا پیدا کړې؟
ځواب: عقاب.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک درسره ښه وکړي، یا درسره مرسته وکړي، څه به ورته وایاست؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو سره غږ او توری بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توری او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

زده کوونکي دې د (ط،ع) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)

- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلې لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ط، ع) توري په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار — توری: ط، ع**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ط، ع/ غږونو پېژندل.
۲. د (ط، ع) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: **۱. په خبرو، ۲. سم، ۳. روان، ٤. ګرځم**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**

۱.زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې په دې اړه یوه کیسه جوړه کړي چې دوه ملګري له یو بل سره خبرې کوي، د یو بل خبرو ته غوږنیسي او یو بل ته مناسب ځوابونه ورکوي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وایي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ** — **توري:** ص، ض

### د زده کړې موخې
١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ص، ض**/ غږونو پېژندل.
٢. د (**ص، ض**) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ٩٠٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (٥ دقیقې)

### ١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (١٠ دقیقې)
١. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده‌کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
٢. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
٣. ښوونکی له زده‌کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې لیکل.

### ٢. د کلمو لوستل (١٠ دقیقې)
١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې یوځای تمرین کړئ.
٢. زده‌کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او بیا دې په انفرادي ډول ولولي.

### ٣. د دویم متن بیا لوستل (٥دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
١. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وایي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووایي.

**د لوستلو پر مهال**
١. زده‌کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکی دې متن زده‌کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده‌کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده‌کوونکي دې په جوړه یي ډول متن ولولي.
٥. زده‌کوونکي دې پخپله متن ولولي.

### ٤. املا (١٠ دقیقې)
١. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
٢. هغوی ته ووایاست چې د (**دفاع**) کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **دِ / فاع**. دا کلمه (٢) هجاوې لري. زده‌کوونکو ته ووایاست چې د کلمې د هرې هجا په هکله



فکر وکړي او د هرې هجا توری دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**وداع، مخترع، اختراع، طوطي، طاووس، ضابط، خیاط**).
٣. کله چې زده‌کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده‌کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده‌کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
٥. بیا دې ښوونکی د زده‌کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت څنګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو شاګردانو سره مرسته وکړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)
١. له زده‌کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ٣ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

### د حسن خط فعالیت (٣٥ دقیقې)
زده کوونکي دې د (ص،ض) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (٥دقیقې)
- ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ص،ض) تورو په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**اوه ویشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** **تعلیم** (د ماشومانو حقونه) **توري:** ث، س، ص، ط

### د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ث، س، ص، ت، ط**/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ث، س، ص، ت، ط**) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**پیغام، زبرى، رضا، شامل، خندل، مهرباني**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ث، س، ص، ط) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې له نورو سره مهرباني ښه ګټې لري.

### د دې اونۍ لپاره ځانګړې یاد داشتونه

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- له (۱۱- ۲٦) اونۍ پورې لاربښوونې په پام کې ونیسئ.
- هغه توري چې شکلونه یې ښېل او غږونه یې سره مشابه وي، په مثالونو کې یو له بل سره پر تله کړئ. لکه: (س) چې له (ث) سره پرتله شوی دی. همدارنګه(ص) له (ث) سره، (ص) له (س) سره او نور.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته ونښيي چې له نورو سره مهرباني کول څه ګټې لري.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.

- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

- **عیني (شکلي) کلمې:** ښوونکی دې د دې اونۍ عیني کلمې پر تختې ولیکي، په زده کوونکو دې یې تکرار کړي چې له شکل سره یې آشنا شي، زده کوونکو ته دې وویل شي چې د دې کلمو توري به په راتلونکو درسونو کې ووایي.

### د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن

## تعلیم

نسیم او صالحه د غیاث اولادونه وو. غیاث نسیم په مکتب کې شامل کړی و. خو صالحه یې پرې نه ښوده.



صالحې له ځان سره وویل: زه به خامخا پلار **رضا** کوم.
یوه ورځ یې د پلار موبایل ته **پیغام** راغی. څوک نه و چې ویې لولي.*
صالحې پیغام ولوست. ویې ویل: **زبرى** مې دربانديې، وارث کاکا مې له لندن څخه راځي.
پلار یې و ویل: څومره ښه. په زبرۍ کې به څه غواړې؟
صالحې و ویل: ** مکتب کې مې شامله کړه.
پلار یې و ویل: خو تا لوستل څنګه زده کړل؟
صالحې و ویل: نسیم چې درسونه ویل، ما هم ورته کتل.
پلار یې و ویل: ښه! نو مکتب کې به دې شامله کړم.

**موضوع:** تعلیم **توري:** ث، س

### د زده‌کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د /ث، س/ غږ پېژندل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (ث، س) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
٥. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده‌کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده‌کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوي غږ سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**ثریا، کبیر، ثواب، زلمی، سابه، صابون، سهار**) وکاروئ.
۳- زده‌کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږ پیل شوي وي.
۱. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۲. توري له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده‌کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. داورېدلوفعالیت(۱۳ دقیقې)

**له اورېدلوڅخه مخکې**

۱. د **پیغام**(خبر، په موبایل کې لیکلی خبر)، **زېری**(ښه خبر)، **رضا** (د یوې خبرې منلو ته تیارول) کلمو په اړه بحث وکړئ.
۲. بیا له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده‌کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ستاسو په فکر پیغام به چا لوستی وي؟
**. صالحې به څه غوښتي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: صالحه او نسیم د چا اولادونه وو؟
ځواب: د غیاث.
۳. پوښتنه: پیغام چا ولوست؟
ځواب: صالحې.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک خپل اولاد، په تېره بیا خپله لورې مکتب ته پرې نه ږدي، تاوان به یې څه وي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ښکلی نوم　　**توري:** س، ص

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د *س، ص/* غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**س، ص**) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. توري د غږونو له لوستلو سره یوځای په هوا کې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(سرک)، دویم انځور (مسواک)، دریم انځور (لباس) څلورم انځور(صندلی)، پنځم انځور (نصیر)، شپږم انځور (مخلص)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمه (سر معلمې) تدریس کړئ.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. د **شامل**= داخله، **ښکلی**= ښایسته، **باید**= خامخا کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.


سـ ـسـ ـس
صـ ـصـ ـص

| | |
|---|---|
| سایه | سا یه |
| لباس | لِ باس |
| صالح | صا لح |
| اخلاص | اخ لاص |

سرمعلمې

ښکلی نوم

وارث خېل زوی مکتب ته راوست په مکتب کې یې شامل کړ. سرمعلمې ثریا ماشوم ته وویل نوم دې څه دی؟ هغه وویل: محمد صالح
سرمعلمې وویل واه! څومره ښکلی نوم! وارث وویل: مننه! ماشوم باید په ښه نوم ونومول شي

۱۵۸

### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: چا خپل زوی په مَکتب کې شامل کړ؟
ځواب: وارث.
۳. پوښتنه: سرمعلمې ثریا له چا څخه وپوښتل چې نوم دې څه دی؟
ځواب: له محمد صالح څخه.
٤. ذهني پوښتنه: وارث او سر معلمې له صالح سره څنګه مهرباني وکړه؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** ښکلی نوم　　　　**توري:** ص، ث

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د /ص، ث/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (ص، ث) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وايي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوي دي او که نه، دغه کلمې (**صابون، ټال، صندوق، لوټ، صندلی، ثریا، ثواب**) وکاروئ.
۳. زده کوونکی دې څو کلمې ووايي چې په همدې غږونو پیل شوي وي .
٤. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۵. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **راوستل**، **سرمعلمه**(د معلمانو مشره)، **ماشوم**(کوچنی) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.




**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه‌یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: سرمعلمې څه وویل؟
ځواب: څومره ښکلی نوم!
۳. پوښتنه: حارث څه وویل؟
ځواب: ماشوم باید په ښه نوم ونومول.
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو په فکر، د ماشومانو نور کوم حقونه دي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** مهرباني **توري:** ت، ط

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ت، ط**/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ت، ط**) تورو لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۲. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۳. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکې دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.
لومړی انځور(تله)، دویم انځور (کتاب)، دریم انځور (ساعت)
څلورم انځور(طوطي)، پنځم انځور (سطل)، شپږم انځور (ضابط)

**۲. د کلمو لوستل(۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکې دې د ترکیب او هجا د چوکاټ کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. عیني کلمې (کالي، مهرباني) تدریس کړئ.

**۳. د لوستلو دویم متن**

**(۱۳ دقیقې) له لوستلو مخکې**

۱. د **خنډل**(ټک وهل)، **مهرباني** (زړه سوی)، **مهربان** (زړه سواند)کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکې وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکې دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکې او زده کوونکې دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکې دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**




۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: څوک مکتب ته روان وو؟
ځواب: طاهر او تواب.
۳. پوښتنه: چا طاهر ته آفرین وویل؟
ځواب: تواب.
٤. ذهني پوښتنه: مهرباني څه ګټې لري؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکې دې د (ث،س،ص) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکې قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکې دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.

- زده کوونکې دې د (ث،س،ص) تورو په خپلو کتابچو کې په کرکې قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار        توري: ث، س، ص**

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ث، س، ص/ غږونو اورېدل او په توپير يې پوهېدل.
٢. د (ث، س، ص) تورو لوستل او لیکل.
٣. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معيار ٩٥٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ويل (د سموالي معيار ٨٠٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (٥ دقيقې)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (١٠ دقيقې)

١. ښوونکی د تصويرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره يوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
٢. ښوونکی توري پر تختې ليکي، په ګوته يې ښيي او غږونه يې لولي.
٣. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د ليکلو طريقه تکراروي په هوا کې ليکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو څارل، په کتابچه کې ليکل.

### ٢. د خانه خالي جملو لوستل (١٠ دقيقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بيا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
٣. ځوابونه: ١. **زوی ٢. ښه ٣. روان ٤. آفرين**

### ٣. د دويم متن بيا لوستل (٥دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي او و دې وايي چې کيسه د څه شي په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکي او زده کوونکي دې يوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه يې ډول متن ولولي.
٥. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي ليکل (١٠ دقيقې)

١. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کيسو ته په کتو سره، خپلې کيسې جوړوئ.
٢. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
٣. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
٤. زده کوونکو ته ووایاست چې دوی دې په دې اړه يوه کيسه جوړه کړي چې مکتب ته د تللو او له نورو سره د مهربانۍ ګټې څه دي، بيا دې په دې اړه يو رسم وکاږي او يو څو کلمې يا يوه لنډه جمله دې ورسره وليکي.
٥. کله چې زده کوونکي خپلې کيسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کيسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتيا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقيقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ٣ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه يې څو کلمې يا لنډه جمله وليکئ.

موضوع: د بياکتنې او دوامدارې ارزونې ورځ        توري: ت، ط، س، ص

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د **ت، ط، س، ص/** غږونو پېژندل او په توپير يې پوهېدل.
۲. د **(ت، ط، س، ص)** تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو سم لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تياری (۵ دقيقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی د تصويرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره يوځای د کلمو په پيل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې ليکي، په ګوته يې ښيي او غږونه يې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د ليکلو طريقه تکراروي په هوا کې ليکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو خارل، په کتابچه کې ليکل.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقيقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بيا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **آفرين، ۲. په خبرو، ۳. ځومره، ٤. توپ.**

**۳. د دويم متن بيا لوستل (۵دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کيسه د څه شي په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي دې يوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه يي ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته و وايئ چې نن به ځينې کلمې ليکي.
۲. هغوی ته ووایاست چې د **(صابون)** کلمه ولولي او هجاوې يې د



لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **صا / بون**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایاست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې وليکي. دريم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. **(اخلاص، صابر، نصير، غياث، حارث، وارث، ثريا)**.
۳. کله چې زده کوونکو په ليکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرين په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو ليکلي دي او هره کلمه دې پر تختې وليکي.
۵. بيا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعاليت چا ښه ترسره کړی دی او څوک زياتې مرستې ته اړتيا لري. په بل درس کې دې بيا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې او د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرين په کتاب کې وليکئ.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

زده کوونکي دې د (ص،ت،ط) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کړکي قلم سره يې د کرسي خط پر مخ ښايسته ليکل تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقيقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ص،ت،ط) تورو په خپلو کتابچو کې په کړکي قلم يا پنسل سره تمرين کړي.

**اته ویشتمه اونۍ** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** د کور کارونه **توري:** ز، ذ، ظ، ض

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /**ز، ذ، ظ، ض**/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ز، ذ، ظ، ض**) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د (**غوړول، لوښي، مرسته، ستړیا، طناب، حاصل**) کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. زده کوونکي د (ز.ذ، ظ، ض) تورو له ښو سره بلد شي او د کرسي خط پرمخ یې ښایسته ولیکي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په دې پوه شي چې له مور او پلار، خویندو او وروڼو سره مرسته کول ځه ګټې لري.

**د دې اونۍ لپاره ځانګړې یاد داشتونه**

- ورځنۍ موخې او د ټولګي مقررات په لنډه توګه بیان کړئ.
- له (۱۱- ۲٦) اونۍ پورې لارښوونې په پام کې ونیسئ.
- هغه توري چې شکلونه یې بېل او غږونه یې سره مشابه وي، په مثالونو کې یو له بل سره پر تله کړئ. لکه: (س) چې له (ث) سره پرتله شوی دي. همدارنګه(ص) له (ث) سره، (ص) له (س) سره او نور.
- ښوونکی دې د مرستې او همکارۍ پر ګټو تمرکز وکړي.

- **د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.

- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د لومړۍ ورځې د اورېدلو متن**

## د کور کارونه

مهناز په کور کې یوازې وه. اولادونه یې ذاکر او شازیه په ښوونځي کې وو. مهناز د کور خیرنې جامې مینځلې چې ذاکر او شازیه راغلل. مور ته یې سلام وکړ. کتابونه یې کېښودل.*

ذاکر په سطل کې اوبه راوړې. شازیې مینځلې جامې پر طناب **وغوړولې**.



مور یې دواړه پر تندیو ښکل کړل. ویې ویل: لوی شئ بچیانو. نن په **ستړیا** ونه پوهېدم. اوس به نو خوندور سابه درته پاخه کړم.

ذاکر و ویل: ** مورې! سابه به زه درته ومینځم.

شازیې و ویل: **لوښي** به زه ومینځم.

مهناز و ویل: آفرین! تاسو هر وخت راسره مرسته کوئ.

**موضوع:** د کور کارونه **توری:** ز، ذ

### د زده‌کړې موخې

۱. د کلمو په پیل کې د /ز، ذ/ غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (ز، ذ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځوابونه ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده‌کوونکو سره راوښیئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده‌کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوې دي او که نه، دغه کلمې (**ذاکر، خوکی، ذکرالله، مېرمن، ذره بین، زرخانګه**) وکاروئ.
۳- زده‌کوونکی دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږونو پیل شوې وي.
۱. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۲. توري له زده‌کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده‌کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

### ۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي دې نورې کلمې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده‌کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده‌کوونکي دې جملې په جوړه‌یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. داورېدلو فعالیت (۱۳ دقیقې)

**له اورېدلو څخه مخکې**

۱. د **غوړول**(هوارول)، **لوښي**(ظرفونه)، **ستړیا**(ستوماني) کلمو په اړه بحث وکړئ:
۲. بیا له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده‌کوونکو سره بحث وکړئ.
٤. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي




په هکله وي.

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال، له زده‌کوونکو څخه د کیسې په هکله دوې پوښتنې وکړئ.
*. ذاکر او شازیې به بیا څه کړي وي؟
**. ذاکر به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/نه.
۲. پوښتنه: ذاکر څه وکړل؟
ځواب: ذاکر په سطل کې اوبه راوړې.
۳. پوښتنه: شازیې څه وکړل؟
ځواب: شازیې مینځلې جامې پر طناب وغوړولې.
٤. ذهني پوښتنه: له نورو سره مرسته کول څه ګټې لري؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. له زده‌کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** مرسته **توري:** ظ، ض

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ظ، ض/ غږ اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (ظ، ض) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ٤ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل.
(د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای مربوط غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ګوته کړئ.
۱. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۲. د تورو د غږونو له لوستلو سره یوځای په هوا کې یې ولیکئ، په ګوتو سره یې په درسي کتاب کې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
لومړی انځور(ظاهره)، دویم انځور (منظره)، درېیم انځور (حفیظ) څلورم انځور(ضابط)، پنځم انځور (فضل)، شپږم انځور(حوض)

**۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۱۳ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **مرسته**(کومک)، **آفرین**(شاباش)، **طناب** (هغه پړی چې کالي پرې اچول کېږي) کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي


ظفر ظ فر محافظ م حافظ
ضابط ضا بط غرض غ رض

مرسته

ظریف وپوښتل زویه: نن مو څه ولوستل؟ رضا وویل: په کارونو کې مرسته کول پلار یې وویل آفرین: په مرسته کارونه ژر کېږي ستاسو مور کالي مینځل څه مرسته مو ورسره وکړه؟ رضا وویل: پلاره! ما اوبه راوړې خور مې کالي پر طناب وغوړول

۱۲۴

په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله دا متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ظریف څه وپوښتل؟
ځواب: نن مو څه ولوستل.
۳. پوښتنه: رضا څه لوستي وو؟
ځواب: په کارونو کې مرسته کول.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې تاسو د کور په کارونو کې مرسته کوئ، څه احساس کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** مرسته **توري:** ز، ظ

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل کې د **/ز، ظ/** غږونو اورېدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د **(ز، ظ)** تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د اورېدلو د کیسې پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. د انځورونو په اړه بحث وکړئ او لومړي غږونه یې له زده کوونکو سره په ګوته کړئ.
۲. ښوونکی کلمې وایي او زده کوونکي معلوموي چې دغه کلمې له نوو غږونو سره پیل شوې دي او که نه، دغه کلمې (**زمری، غاښ، زانګو، مسواک، زرغونه، ظریف، پیاله، ظرفونه**) وکاروئ.
۳- زده کوونکي دې څو کلمې ووایي چې په همدې غږونو پیل شوې وي.
۱. توري پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۲. توري له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**۲. د کلمو او جملو لوستل (۱۲ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ. دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې نورې کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.
۳. لومړۍ جمله پر تختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې ولولئ.
٤. زده کوونکي دې جملې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

**۳. د لومړي متن بیا لوستل (۱۳دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د **(غوړول، طناب، لوستل)** کلمو د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.



**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: مرسته کارونه څنګه کوي؟
ځواب: آسانوي یې
۳. پوښتنه: د رضا خور له مور سره څه مرسته کوله؟
ځواب: کالي یې پر طناب غوړول.
۴. ذهني پوښتنه: که تاسې هم خپل کارونه ولرئ او هم باید له نورو سره مرسته وکړئ، اول به کوم کار کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره نوي غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د ترکیب کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**موضوع:** د منړو باغ  **توري:** ذ، ض

**د زده کړې هدفونه**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ذ، ض**/ غږونو اوربدل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ذ، ض**) تورو لوستل او لیکل.
۳. له تورو د ٤ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او له زده کوونکو سره یوځای اړه غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې وښیئ.
۱. د تورو بڼې پر تختې ولیکئ، غږونه او نومونه یې و وایئ.
۲. د تورو غږونه له زده کوونکو سره ولولئ، په هوا کې یې ولیکئ، په خپلو ګوتو یې تعقیب کړئ او زده کوونکي دې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.
لومړی انځور(ذره بین)،دویم انځور (تذکره)، دریم انځور (کاغذ) څلورم انځور(ضابط)، پنځم انځور (فضل)، شپږم انځور(حوض)

### ۲. د کلمو لوستل (۱۲ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دې د ترکیب او هجا د چوکاټ دا کلمې په جوړه یي او انفرادي ډول ولولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۱۳ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د (**حاصل** = نتیجه، **مرسته** = کومک، لاس نیوی) کلمې د معنا په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ:
۲. بیا له زده کوونکو وغواړئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې یې استعمال تمرین کړي.
۳. د کیسې د انځور او عنوان په هکله له زده کوونکو سره بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې متن یوځای په ګډه سره ولولي.
۴. زده کوونکي دې متن په جوړه یي ډول ولولي.



**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې د کیسې په اړه د هغوی وړاندوینه سمه ده او که نه؟ هو/ نه.
۲. پوښتنه: ذاکر اکا د څه شي باغ لري؟
ځواب: د منړو.
۳. پوښتنه: چا وویل چې موږ به درسره مرسته وکړو؟
ځواب: ضیا او راضیې.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې له یو چا مرسته کوئ، ولې باید د هغه ضرورتونو ته پام وکړئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو سره غږونه او توري بیا تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. توري او کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ز،ذ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې د (ز،ذ) تورو په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

**موضوع: د اونۍ تکرار      توري: ز، ذ، ظ، ض**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د **/ز، ذ، ظ، ض/** غږونو اورېدل.
۲. د **(ز، ذ، ظ، ض)** تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښيي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي: په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ښارل، په کتابچه کې لیکل.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **زر** ۲. **کالي** ۳. **حاصل** ٤. **وکړو**

### ۳. د دویم متن بیا لوستل (۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسو د دې اونۍ کیسو ته په کتو سره، خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګورئ او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
٤. زده کوونکو ته وواياست چې دوی دې له خپلې کورنۍ سره د مرستې په اړه یوه کیسه جوړه کړي. بیا دې په دې اړه یو رسم وکاږي او یو څو کلمې یا یوه لنډه جمله دې ورسره ولیکي.
۵. کله چې زده کوونکي خپلې کیسې نورو ته وايي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او له هغوی څخه د کیسې په اړه پوښتنې وکړئ. که اړتیا وي، مرسته ورسره وکړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د خانه خالي جملې ۳ ځلې ولولئ. انځورونو ته وګورئ، په اړه یې څو کلمې یا لنډه جمله ولیکئ.

**موضوع: د بیاکتنې او دوامدارۍ ارزونې ورځ** **توري:** ز، ذ، ظ، ض

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /**ز، ذ، ظ، ض**/ غږونو پېژندل او په توپیر یې پوهېدل.
۲. د (**ز، ذ، ظ، ض**) تورو لوستل او لیکل.
۳. د کلمو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪)

**د تېر درس تکرار او نوي درس ته تیاری (۵ دقیقې)**

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی د تصویرونو په باره کې له زده کوونکو سره بحث کوي او له هغوی سره یوځای د کلمو په پیل، منځ او پای کې غږونه پېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، په ګوته یې ښیي او غږونه یې لولي.
۳. ښوونکی له زده کوونکو سره د تورو د لیکلو طریقه تکراروي په هوا کې لیکل، په درسي کتاب کې په ګوتې سره د تورو ځارل، په کتابچه کې لیکل.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۱۰ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې ورپسې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
۳. ځوابونه: ۱. **زوی ۲. راواخله ۳. حافظ ٤. لوبو**

**۳. د دویم متن بیا لوستل (۵دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه دې فکر وکړي او و دې وايي چې کیسه د څه شي په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې ځواب ووايي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې هڅه وکړي چې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي دې یوځای متن ولولي.
٤. زده کوونکي دې په جوړه یې ډول متن ولولي.
۵. زده کوونکي دې پخپله متن ولولي.

**٤. املا (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې نن به ځینې کلمې لیکي.
۲. هغوی ته وواياست چې د (**زانګو**) کلمه ولولي او هجاوې یې د



لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي **زانـ / ګو**. دا کلمه (۲) هجاوې لري. زده کوونکو ته وواياست چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او د هرې هجا توری دې ولیکي. دریم پړاو په دغو کلمو سره تکرار کړئ. (**زرمینه، نیمروز، ظفر، لحاظ، منظره، ضابط، غزنې**).
۳. کله چې زده کوونکي په لیکلو لاس پورې کړ، ښوونکی دې په ټولګي کې وګرځي او زده کوونکي دې وڅاري.
٤. د دې تمرین په پای کې، دې ښوونکی د هغه تورو په اړه پوښتنه وکړي چې زده کوونکو لیکلي دي او هره کلمه دې پر تختې ولیکي.
۵. بیا دې ښوونکی د زده کوونکو کتابچې وګوري چې دا فعالیت څنګه ترسره کړی دی او څوک زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې دې بیا له همدغو زده کوونکو سره مرسته وکړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. له زده کوونکو سره توري او غږونه تکرار کړئ.
۲. کورنۍ دنده: د هجا کلمې ۳ ځلې ولولئ. کلمې د تمرین په کتاب کې ولیکئ.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

زده کوونکي دې د (ض،ظ) تورو بڼې ته په پوره دقت سره وګوري او له کرکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵دقیقې)**

- ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه د توري د بڼې او ښکلي لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.

- زده کوونکي دې د (ص،ط) تورو په خپلو کتابچو کې په کرکي قلم یا پنسل سره تمرین کړي.

# لغت نامه

| اونۍ | لغت | معناوې | اونۍ | لغت | معناوې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۳ اونۍ | هلال | نوم دی. د اولو ورځو سپوږمۍ ته چې نرۍ وي. | ۱۰ اونۍ | لودین | نارینه نوم او د یو قوم نوم هم دی. |
| // | لاله | غاټول | // | نوید | نارینه نوم |
| ۴ اونۍ | بلال | نوم دی. د اصحابي نوم هم دي. | // | سراج | نارینه نوم |
| // | باب | فصل، اړه | // | رواج | دود |
| // | ملهم | د زخم دارو | // | وهاج، منهاج | نارینه نومونه دي |
| // | امام | لارښوونکی، هغه چاته هم وايي چې په جومات کې لمونځ ورکوي. | // | مجاهد | جهاد کوونکی |
| // | ملاله | ښځینه نوم دی. | // | ناجو | یوه دنګه ونه ده چې اوړی ژمی شنه وي |
| ۵ اونۍ | بهلول | یو نارینه نوم دی. د قوم د مشر او نیک سړي معنا هم لري. | ۱۱ اونۍ | ببرک، خاټوله | نومونه دي |
| // | دوا | دارو، درمل | // | بېواک | څوک چې خپل واک نه لري |
| // | بلد | آشنا | // | مکان | ځای |
| ٦ اونۍ | آمو | د یو سیند نوم دی. | // | ترینکوټ | د اوروزګان ولایت مرکز |
| // | آباد | ودان | // | پیلوټ | د الوتکې چلوونکی |
| // | الماس | نارینه نوم، یو قیمتي غمی | // | پټان | نوم دی. په هند کې پښتنو ته هم پټان وايي. |
| // | لباس | جامې، کالي. | // | ټاټوبی | سیمه، ځای |
| // | هوس | هیله او غوښتنه او نوم هم دی. | // | ټټر | سینه |
| ۷ اونۍ | مسلم | مسلمان | ۱۳اونۍ | باجوړ | د یوې سیمې نوم دی. |
| // | مل | ملګری | // | مدینه | په سعودي عربستان کې د یو ښار نوم دی. |
| // | آلو | آلوچه (یو ډول مېوه ده) | // | خوندوره | مزه ناکه |
| ۸ اونۍ | سَوَی | سوخته | // | ورخ | له ویالې څخه پټیو ته د اوبو د ورتلو خوله |
| // | لَوَی | د بخارۍ په نل کې د لوګیو تور ګردونه | | پوخ | ټینګ، کلک |
| // | تلاوت | د قرآن کریم لوستل | | پراخ | ارت |
| // | سادات | نوم دی. د یو قوم نوم دی چې د نسب سلسله یې حضرت محمد (ص) ته رسېږي. | // | اړم | د اوسپنې یا لرګیو ډانګ چې درانه شیان پرې پورته کېږي. |
| // | بَدَی | نیکی او بدی د ولسي کیسو شخصیتونه دي | // | ناجوړ | مریض |
| // | یوم | هغه ښځ چې ټکک لري. | ۱۴ اونۍ | میرباش | نارینه نوم دی |
| // | بُست | په هلمند کې د یوې سیمې نوم | // | تلاش | هڅه |
| ۹ اونۍ | رستم | نوم دی. | // | داش | نغری، بټۍ |
| // | رودات | په ننګرهار کې د یوې ولسوالۍ نوم دی. | ۱۵ اونۍ | ممتاز | غوره |
| // | باور | نارینه نوم دی د اعتبار معنا لري. | // | نوروز | نوم دی. د کال لومړی ورځ ته هم وايي |
| // | مروه | ښځینه نوم دی | // | بلوچ | یو قوم دی |
| // | سارا | ښځینه نوم دی | ۱٦ اونۍ | پښ | اهنګر |
| // | لاروی | په لاره تلونکی | // | غبرګ | جوړه |
| // | درومي | ځي | // | وردګ | د هېواد یو ولایت دی |
| ۱۰ اونۍ | ایمان | باور | ۱۷اونۍ | ګودر | چینه، کاریز، یا ویاله |

| اونۍ | لغت | معناوې | اونۍ | لغت | معناوې |
|---|---|---|---|---|---|
| // | بزگر | دهقان، ښکاروز، څوک چې ځمکه کري | ۲۱ اونۍ | ژوبڼ | باغ وحش هغه بڼ چې وحشي او اهلي حیوانات په کې ساتل شوي وي او خلک د لیدو لپاره ورځي. |
| // | شلغم | ټیپر، منګریته | ۲۲ اونۍ | اناث | ښځې او نجونې |
| // | خیر | ښه، ښه کارونه | // | مزه | خوند |
| // | ښارو | مَینا | // | ژرنده | هغه ماشین چې غنم او جوار اوړه کوي |
| // | خړ | خاکستري، ککړ | // | آزموینه | امتحان |
| // | زکات | د شتو او مال یوه برخه چې غریبانو ته ورکول کېږي | ۲۳ اونۍ | وارث | نوم دی |
| // | شیندل | پاشل، اچول | // | کتابتون | هغه ځای چې ډېر کتابونه په کې ساتل کېږي او خلک په کې مطالعه کوي |
| ۱۸ اونۍ | ختیځ | لمر خاته | // | جراح | هغه ډاکټر چې عملیاتونه کوي |
| // | بنداژ | پټۍ | // | بیړه | تلوار، تادي، عجله |
| // | بَلَول | لګول، روښانه کول | // | غوسه | قهر |
| // | پوځ | اردو، عسکر | // | فتاح | نوم دی |
| // | ګهیځ | سهار | // | فلاح | خلاصون |
| ۱۹اونۍ | بړېڅ | یو قوم دی | // | زغمل | حوصله کول |
| // | اڅک | نوم دی. | ۲۴ اونۍ | زیار | زحمت |
| // | غوځ | پري | // | حافظ | هغه څوک چې قران شریف یې په یادو زده وي |
| // | بلوڅ | نوم دی. یو قوم هم دی | // | زحمت | زیار |
| // | بوډا | زوړ، سپین ږیری | // | محفوظ | نوم دی |
| // | ډېوه | څراغ، نوم هم دی | // | لحاظ | خاطر، مراعات، نوم هم دی |
| // | ډاډه | باورمن، مطمین | // | دارالحفاظ | هغه مدرسه چې حافظان په کې روزل کېږي |
| // | څپاند | نوم دی | // | ذره بین | هغه ښیښه چې شیان غټ ښکاره کوي |
| ۲۰ اونۍ | انګړ | د کور حویلي، سرای | // | ذکي | هوښیار، نوم هم دی |
| // | مقدس | پاک | ۲۵ اونۍ | خواص | خویونه او عادتونه |
| // | اُتاق | کوټه | | اخلاص | د زړه صفایي او ښه نیت |
| // | مشتاق | نوم دی او شوق لرونکي ته هم وایي | // | مخلص | څوک چې ښه نیت لري |
| // | ورمېږ | غاړه، مغزی، غړی | ۲۶ اونۍ | محتاط | احتیاط کاره |
| // | لایق | تکړه، نامي | // | مخلوط | ګډ، سره ګډ شوي |
| // | ټپي | زخمي | // | اختراع | د نوي شي جوړول |
| ۲۱اونۍ | کارټون | د ماشومانو لپاره فلم | // | مخترع | څوک چې اختراع کوي (نوي شیان جوړوي) |
| // | نداف | څوک چې مالوچ ټکوي | // | وداع | مخه ښه، خدای پامان |
| // | اشرف | غوره، نوم هم دی | // | دفاع | د خطر لرې کول او مخنیوی |
| // | کټ بوټ | د مزرې له پاڼو اوبدل شوي رسی ده. | // | لالهانده | سرګردانه |
| // | بڼ | باغ | ۲۷ اونۍ | صالح | ښه، نېک عمله، نوم هم دی |
| // | ترکاڼ | نجار، وستاکار | // | څنډل | د ټکان په وسیله له ګردونو پاکول |
| // | ځدراڼ | نوم دی او د یوه قوم نوم هم دی | // | دلاسا | تسلي او ډاډ ورکول |
| // | تمرین | په تکرار سره یو کارکول | // | شفقت | مهرباني، خواخوږي |
| // | شکونړ | یو حیوان دی چې تېره غشي لري | ۲۸ اونۍ | محافظ | ساتونکی |
| // | فیل | یو حیوان دی | // | نیمروز | د هېواد یو غربي ولایت |